دا کتاب د لوی احمد شاه بابا رحمة الله علیه علمي او کلتوري مرکز او "رشاد خپرندویه ټولني" په ګډه مرسته چاپ سو .

## د کتاب پېژندنه :

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | ::: | نوموړکي مؤرخین |
| لیکوال | ::: | پوهاند علامه عبدالحی حبیبي |
| لومړی چاپ | ::: | ۱۳۵۹/لمریز کال کابل |
| دوهم چاپ | ::: | ۱۳۸۳ /لمریز کال کندهار |
| خپروونکی | ::: | د لوی احمدشاه بابا علمي او کلتوري مرکز |
| ډیزاین / کمپوز | ::: | رشاد کمپیوټر اداره |
| چاپ شمېر | ::: | (۵۰۰) ټوکه |
| چاپ چاري | ::: | صحاف نشراتي مؤسسه |

# د افغانستان او پښتنو د تاریخ نوموړکي مؤرخین

لیکوال :

پوهاند عبدالحی حبیبي

# فهرست


| گڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|
| ۱. | د خپرونکي یادښت | ۱ |
| ۲. | د افغانستان او پښتنو د تاریخ ځیني مؤرخین | ۳ |
| ۳. | یادښت | ۴ |
| ۴. | مؤرخین د لوی مؤرخ له نظره | ۶ |
| ۵. | سلیمان ماکو د (تذکره الاولیاء) لیکوال | ۲۲ |
| ۶. | شیخ کته د (لرغوني پښتانه) لیکوال | ۲۳ |
| ۷. | شیخ قاسم د (تذکرهٔ اولیاء افغان) لیکوال | ۲۵ |
| ۸. | شیخ امام الدین د (تاریخ افغاني) لیکوال | ۲۶ |
| ۹. | محمد بن علي البستي د (تاریخ سوري) خاوند | ۲۷ |
| ۱۰. | احمد بن سعید اللودي د (اخبار اللودي) لیکونکی | ۲۹ |
| ۱۱. | دوست محمد کاکړ د (غرغښت نامې) لیکونکی | ۳۱ |
| ۱۲. | شیخ بستان بړیڅ د (بستان الاولیاء) لیکونکی | ۳۲ |
| ۱۳. | علي محمد کندهاری د (حالنامې) لیکوال | ۳۳ |
| ۱۴. | اخوند درویزه د (مخزن الاسلام او تذکرې) لیکونکی | ۳۳ |
| ۱۵. | کامران خان سدوزی د (کلید کامرانی) مؤلف | ۳۴ |
| ۱۶. | الله یار د (تحفهٔ صالح) لیکوال | ۳۶ |
| ۱۷. | محمد رسول هوتک د (بیاض) لیکونکی | ۳۷ |
| ۱۸. | نعمت الله هروی د (مخزن افغانی) لیکوال | ۳۷ |
| ۱۹. | هیبت خان کاکړ د (مخزن افغانی) لیکمرستونکی | ۳۸ |
| ۲۰. | شیخ عباس سروانی د (تاریخ شیرشاهي) لیکوال | ۳۹ |
| ۲۱. | مولانا محمود د (تاریخ ابراهیم شاهی) لیکوال | ۴۰ |

| گڼه | سرلیک | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۲۲. | احمد خان د (مجمع التواریخ) لیکوال | ۴۰ |
| ۲۳. | ملا مست زمند د (سلوک الغزاه) لیکوال | ۴۱ |
| ۲۴. | شیخ رزق الله مشتاقي دهلوي د (واقعات مشتاقي) لیکوال | ۴۲ |
| ۲۵. | ابراهیم بېټني د (تاریخ شېرشاهي) بشپړوونکی | ۴۳ |
| ۲۶. | غلام حسین سلیم د (ریاض السلاطین) لیکوال | ۴۵ |
| ۲۷. | شیخ ملي د (دفتر) لیکوال | ۴۵ |
| ۲۸. | ګجو خان راڼیزی د پښتنو د تاریخ لیکوال | ۴۷ |
| ۲۹. | خوشحال خان خټک د (بیاض) لیکوال | ۴۸ |
| ۳۰. | حافظ رحمت خان د (خلاصه الانساب) لیکوال | ۴۹ |
| ۳۱. | نواب مستجاب خان بړېڅ د (ګلستان رحمت) لیکوال | ۵۱ |
| ۳۲. | سعادت یار خان بړېڅ د (ګل رحمت) لیکوال | ۵۱ |
| ۳۳. | نیاز احمد "هوش" د (تاریخ روهیل کهنډ) لیکوال | ۵۲ |
| ۳۴. | محمد سلیمان خان اسد د (تاریخ افغانستان) لیکوال | ۵۲ |
| ۳۵. | نواب محبت خان د (ریاض المحبه) لیکوال | ۵۳ |
| ۳۶. | ..... د (تذکره الملوک) لیکوال | ۵۵ |
| ۳۷. | خان جهان لودي د (مرآت الافاغنه) لیکوال | ۵۷ |
| ۳۸. | منشي عبدالکریم د (تاریخ احمد) لیکوال | ۵۸ |
| ۳۹. | اکبر د یوې تاریخي رسالې لیکوال | ۵۹ |
| ۴۰. | ..... د (نادر نامې) ناظم | ۶۰ |
| ۴۱. | ..... د (سلطان اویس) د تاریخ لیکوال | ۶۰ |
| ۴۲. | میا عمر څمکنی د (شجرهٔ نسب افغانان) لیکوال | ۶۱ |
| ۴۳. | محمد د (پټې خزانې) لیکوال | ۶۲ |
| ۴۴. | رېدی خان مهمند د (محمودنامې) ناظم | ۶۴ |
| ۴۵. | د (صولت افغاني) لیکوال محمد زردارخان ناغر | ۶۴ |
| ۴۶. | افضل خان خټک د (تاریخ مرصع) لیکوال | ۶۵ |
| ۴۷. | میرزا عطاء محمد ښکارپوري د (نوای معارک) لیکوال | ۶۶ |
| ۴۸. | حاجي محمد عارف قندهاری د (مطلع او مقطع) لیکوال | ۶۷ |
| ۴۹. | سلطان محمد خالص د (تاریخ سلطانی) لیکوال | ۶۸ |
| ۵۰. | قاسم علي خان د (محاربهٔ کابل) ناظم | ۷۰ |
| ۵۱. | رساله نسب نامه فرقه غلجي | ۷۱ |
| ۵۲. | روزنامهٔ غزوات هندوستان | ۷۲ |
| ۵۳. | ائمه الافاغنه | ۷۳ |
| ۵۴. | د ملا محمدخانمیر چارمقاله | ۷۴ |
| ۵۵. | اسرار الافاغنه | ۷۴ |
| ۵۶. | خواجو ملېزی د (تواریخ افاغنه) لیکوال | ۷۵ |
| ۵۷. | د پیر معظم شاه (تواریخ رحمت خان) | ۷۶ |
| ۵۸. | سعادتنامهٔ افغانی | ۷۷ |
| ۵۹. | محمد امین سرپربکړی د (جګړه د محمود افغان | ۷۸ |
| ۶۰. | عبدالغفار هوتک د کورنۍ د حالاتو لیکوال | ۷۹ |
| ۶۱. | د باروزو جنګنامه | ۸۰ |
| ۶۲. | تذکیر البار (حالات باروزائی) | ۸۰ |
| ۶۳. | منظومه جنګنامه | ۸۱ |
| ۶۴. | د (تذکره الملوک) نوموړی لیکوال | ۸۱ |
| ۶۵. | موسی بن جرجیس د (تاریخ العجم و الافغان) لیکوال | ۸۲ |
| ۶۶. | د قاسم علي افریدي تاریخ | ۸۲ |
| ۶۷. | محمد امین ګلستانه د (مجمل التواریخ) لیکوال | ۸۴ |
| ۶۸. | د (حقیقت بناء و عروج فرقهٔ سکهان) لیکوال | ۸۴ |
| ۶۹. | حسین علي د (زیب تاریخها) لیکوال | ۸۵ |
| ۷۰. | محمدحسیني د (تاریخ احمدشاهي) لیکوال | ۸۵ |
| ۷۱. | عبدالرحمن بن احمد روشن خان د (تاریخ احمدشاه | ۸۶ |
| ۷۲. | شیخ حسین الله د (فتح نامې) ناظم | ۸۶ |
| ۷۳. | امام الدین حسیني چشتي د (تاریخ حسین شاهي) لیکوال | ۸۷ |
| ۷۴. | تاریخ محاربهٔ کابل یا ظفرنامه اکبري | ۸۷ |
| ۷۵. | فداحسین د (تاریخ افغانستان) لیکوال | ۸۸ |

| گڼه | سرلیک | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۷۶. | کاشي راج پنډت د (احوال جنګ بهاو و احمدشاه | ۸۸ |
| ۷۷. | غلام حسین ثمین د (حالات امدن احمدشاه درانی | ۸۹ |
| ۷۸. | عبدالکریم کشمیری د (بیان واقع) لیکوال | ۸۹ |
| ۷۹. | محمود الموسوی د (کتاب اقوام و فرقه های افغان) لیکوال | ۹۰ |
| ۸۰. | محمدعلي انصاري د (تاریخ مظفري) لیکوال | ۹۰ |
| ۸۱. | محمد اسلم د (فرحت الناظرین) لیکونکی | ۹۱ |
| ۸۲. | محمدیوسف سدوزی د (کلیات ریاض) لیکوال | ۹۱ |
| ۸۳. | د اکماس کردي (جنګنامه) | ۹۲ |
| ۸۴. | محمدجعفر شاملو د (منازل الفتوح) لیکوال | ۹۲ |
| ۸۵. | د (تاریخ فیض بخش) لیکوال شیوپرشاد | ۹۳ |
| ۸۶. | عروج و خروج احمدشاه درانی | ۹۳ |
| ۸۷. | سوهن لال سوري د (عمده التواریخ) لیکوال | ۹۳ |
| ۸۸. | (تهماس نامه) د تهماس خان لیکنه | ۹۴ |
| ۸۹. | تاریخ احمدشاهی | ۹۴ |
| ۹۰. | مراسلات احمدشاه | ۹۴ |
| ۹۱. | (شاهنامه احمدیه) د نظام الدین عشرت مثنوي | ۹۵ |
| ۹۲. | د قدرت الله صدیقي (جام جهان نما) | ۹۵ |
| ۹۳. | د شیرمحمدخان (زبده التواریخ) | ۹۵ |
| ۹۴. | تاریخ بلوچستان | ۹۶ |
| ۹۵. | د میرزا احمدعلي کتابچه | ۹۶ |
| ۹۶. | اندرام د (بدایع وقایع) لیکوال | ۹۷ |
| ۹۷. | هانوی جونس د (انقلاب پارس) لیکوال | ۹۷ |
| ۹۸. | د محمدحسن مستوقي (زبده التواریخ) | ۹۸ |
| ۹۹. | میر عبدالکریم ندیم د افغان او بخارا مؤرخ | ۹۸ |
| ۱۰۰. | محمد رحیم بخش د (دولت درانیه) لیکوال | ۹۹ |
| ۱۰۱. | د میرمحمد باقر یاداښتونه | ۹۹ |
| ۱۰۲. | محمد طاهر وحید قزویني د (عباس نامې) مؤلف | ۱۰۰ |

| گڼه | سرلیک | مخ |
| --- | --- | --- |
| ۱۰۳. | د محمد علي حزین تذکره | ۱۰۰ |
| ۱۰۴. | د بصیرت نامې لیکوال | ۱۰۰ |
| ۱۰۵. | عبدالنبي بهبهاني د (بدایع الاخبار) لیکوال | ۱۰۱ |
| ۱۰۶. | تاریخ خاندان سدو و میر افغان | ۱۰۱ |
| ۱۰۷. | عبدالله د (تاریخ داوری) لیکوال | ۱۰۱ |
| ۱۰۸. | ملا اختر د تاریخ لیکوال | ۱۰۱ |
| ۱۰۹. | محمد کاظم مروی د (نامهٔ عالم آرا) لیکوال | ۱۰۲ |
| ۱۱۰. | احمد علي خان وزیری د تاریخ کرمان لیکوال | ۱۰۲ |
| ۱۱۱. | د ایران او اروپا روابط د صفویانو په وختو کي | ۱۰۳ |
| ۱۱۲. | ظفرنامهٔ خسروی | ۱۰۳ |
| ۱۱۳. | خاینکوف د بخارا د خانی او علمي تحقیقاتو لیکوال | ۱۰۳ |
| ۱۱۴. | نورمحمد د (تاریخ سلیمانی) لیکوال | ۱۰۴ |
| ۱۱۵. | شاه محمد د (تاریخ خاندان سدوزائی) لیکوال | ۱۰۴ |
| ۱۱۶. | محمدحسن خان مراغی د (مطلع الشمس) لیکوال | ۱۰۵ |
| ۱۱۷. | فریه فرانسوی ګرزندوی د افغانانو د تاریخ لیکوال | ۱۰۵ |
| ۱۱۸. | فارسي اخبارات و مراسلات | ۱۰۶ |
| ۱۱۹. | د فارسي ژبي د اطلاعاتو کالنی | ۱۰۶ |
| ۱۲۰. | بګدان اسلانوف د افغاني راپور لیکوال | ۱۰۷ |
| ۱۲۱. | دیفریموف یادداشتونه په روسي ژبه | ۱۰۷ |
| ۱۲۲. | د جان فاستر د سفر یادداشتونه | ۱۰۸ |
| ۱۲۳. | راورټي د پښتو او افغاني پيژندني ستر لیکوال | ۱۰۸ |
| ۱۲۴. | پاتروسینسکي د (انقلاب ایران) لیکوال | ۱۰۹ |
| ۱۲۵. | میرزا محمد خلیل صفوي د (مجمع التواریخ) لیکوال | ۱۱۰ |
| ۱۲۶. | میرٔ احمدشاه رضواني د (تحفه الاولیاء) لیکوال | ۱۱۰ |
| ۱۲۷. | تاریخ افغانستان | ۱۱۰ |
| ۱۲۸. | د ملتان د سدوزو د تاریخ لیکوال احمد نبي خان | ۱۱۱ |
| ۱۲۹. | علي قلي میرزا د (تاریخ وقایع و سوانح افغانستان) مؤلف | ۱۱۲ |

| گڼه | سرلیک | مخ |
|---|---|---|


۱۳۰. بهاري لال د (احوال نجیب الدوله و علي محمد خان ............ ۱۱۲
۱۳۱. فقیر محمد د (جامع التواریخ) لیکوال ............................ ۱۱۲
۱۳۲. عبدالقادر کابلی د (اویماق مغل) لیکوال ........................ ۱۱۳
۱۳۳. محمود بن امیر ولي د (بحر الاسرار) مؤلف ...................... ۱۱۳
۱۳۴. میرزا سنگ محمد بدخشي د (تاریخ بدخشان) مؤلف ............ ۱۱۳
۱۳۵. هنورام د (تاریخ بلوچستان) مؤلف ................................ ۱۱۴
۱۳۶. تاریخ قندهار در عصر درانی ........................................ ۱۱۴
۱۳۷. رای چنرس د (چهار گلشن) مؤلف .................................. ۱۱۴
۱۳۸. عصت الدین د (خلاصه الاخبار) خاوند ............................ ۱۱۵
۱۳۹. سید محمد طباطبائي اصفهاني د (نسب نامه افاغنه) مؤلف .... ۱۱۵
۱۴۰. ثاقب د (تاریخ افاغنه) لیکوال ..................................... ۱۱۵
۱۴۱. احمد د (معدن اخبار احمدی) لیکوال ............................. ۱۱۶
۱۴۲. محمد بدرالرحمن د (واقعات درانی) مؤلف ........................ ۱۱۶


# د خپروونکي یادښت

پښتنو د تاریخ په اوږدو کي د خپل تاریخ د روښانه کولو لپاره هڅي کړي، تاریخونه یې لیکلي، ادبي تذکرې یې لیکلي، ادبیات یې روزلي، د خپل هیواد او حتی سیمي په کچه یې د هغوی د جغرافیایي موقعیت او پولو د روښانه کولو په باره کي آثار کښلي دي.

دا هڅي له ډیري اوږدې زمانې راپیل سوي دي، د اړوندي موضوع په باره کي په لسگونو او سلگونو تاریخي او ادبي کتابونه لیکل سوي دي.

خو ! بدبختانه زموږ هیواد تل د پردو یرغلگرو تر ناروا یرغلونو لاندي راغلی دی چي د دغو یرغلونو په اوږدو کي د دې هیواد تاریخ او فرهنگ ته هم نه زغمونکي زیانونه اوښتي، زموږ تاریخي او ادبي آثار ورک سوي یا یرغلگرو د ځان سره وړي او حتی داسي هم پېښه سوې چي کتابونه څه د کتابو او لیکوالو نومونه هم دغو ځړو سېلابي سېلیو د ځانه سره وړي دي.

خو د دې هیواد او تاریخ زېږوونکي اولس وروستنیو پوهانو د خپلو مشرانو پر پله پل ایښی او د دغه ډول پټو د موندني لپاره یې لیڅي رانغښتي وې او دي، چي د سر په لیکه کي یې د هیواد د نامتو تاریخ لیکونکي، ادبپوه او جغرافیه پوه پوهاند علامه عبدالحي حبیبي رحمه الله نوم راځي. چي تر ډیري اندازې په دې برخه کي بریالی سوی او توانېدلی دی چي زموږ د تاریخ او ادب ډیري تیارې روښانه کړي. هغوی د زیاتو شمېر نورو لیکلو او چاپي آثارو په لړ کي یو هم د "نومورکي مؤرخین" په نوم کتاب دی، چي ۱۳۸ تنه نومورکي تاریخ لیکونکي او یا هم د هغوی کتابونه راپېژني.

د دي چاپ کړي کتاب د نه پیدا کېدو او مهموالي له امله په کندهار کي د **"لوی احمدشاه بابا ﷬ علمي او کلتوري مرکز"** او **"رشاد خپروندویه ټولني"** وپتیل چي دا کتاب د دوهم ځل لپاره چاپ او د تاریخ څېړونکو او مینه والو ته وړاندي کړي.

خدای ﷻ دي وکړي چي د دي کتاب په بیا چاپېدو سره ځوان تاریخ لیکونکي او د فرهنګ مینه وال خپلي راپیل کړي هڅي بشپړي او ګړندۍ کړي.

**په همدې هیله**

**د لوی احمدشاه بابا ﷬ علمي او کلتوري مرکز**

**او**

**رشاد خپرندویه ټولنه**



# د افغانستان او پښتنو د تاریخ ځیني مؤرخین

**زما د یادداښت په کتابچو کي دا (۵۰) کاله ځیني کتابونه یا د نوموړکو تاریخ لیکونکو نومونه سره راټول سوي وو، چي کله کله به ما په خپله له هغو یادونو څخه کار اخیست او د بل چا لپاره د ګټې وړ نه وو.**

**یوه ورځ ښاغلي زلمي هیوادمل ماته وویل چي دغه یادداښتونه که سره راټول سي او د یوه کتابګوټي په توګه چاپ سي، نورو ته به هم ګټور وي او فایده به یې عامه سي.**

**ما هغه ګرد سره راټول کړل او ده ته مي وسپارل چي دا دی د ده په همت خپرېږي. خدای دي خپلي ښې او ښادۍ د ده په برخه کي، چي په داسي کارو کي زیارونه ګالي.**

کابل ـ جمال مېنه
عبدالحی حبیبي
۱ جدي ۱۳۵۹

# یادښت

د کابل پوهنتون د ژبو او ادبیاتو پوهنځی ویاړي چي د هیواد د ستر نومیالي ادبي، علمي او روحاني شخصیت میا فقیرالله حصارکي ننگرهاري د دوه سوم تلین په نمانځنه کي د یو لړ لیکچو (رسالو) په خپرولو سره برخه اخلي او په دې لړ کي د پیاوړي استاد پوهاند حبیبي دغه گرانبیه لیکچه د سیمینار برخه والو او نورو مینه والو ته وړاندي کوي.

په دې لیکچه کي د افغانستان (۱۳۸) تنه پېښلیکونکي (مؤرخین) ښوول سوي چي زیاتره په دغه نامه چاته هڅو څرگند نه وو.

د دغو تاریخ لیکونکو پېژندگلوي دا راڅرگندوي چي په پښتنو کي تاریخ لیکنه لږ تر لږه له اوومي اسلامي پېړۍ (۶۱۲) راهیسي پیل سوې او تر موږه رارسېدلې ده. په دغو نومورکو مؤرخینو کي زیاتره داسي کسان راځي چي د پښتو ادب تاریخ او تذکرو په ترڅ کي نور راز راز تاریخي پیښي هم را اخلي.

په دې توگه دغه لیکچه په خپل تاریخي او ادبي ارزښت سره د پښتو ژبي او ادب پر پښتو څېړونکو او زده کوونکو سربېره له هغو ټولو هیوادوالو سره هم مرسته کولای سي چي غواړي په ټولیزه توگه د پښتنو له تېر اته سوه کلن سیاسي، ادبي او فرهنگي تاریخ څخه خبر سي.



استاد حبیبي د دغه لرغوني فرهنگپالي هیواد د یوه پیاوړي پوهاند، لیکوال، څېړونکي او مؤرخ په توگه خپل ټول ژوند همدا راز علمي څېړنو او پلټنو ته وربښلی او څنگه چي (راټولوونکی موندونکی دی) نو د داسي ډېرو پټو خزانو په رابرسېرونه بریالی سوی هم دی، د غوریانو، سوریانو، لودیانو، لویکانو، د سوات او کونړ د امیرانو او داسي نورو افغاني او بیا پښتنو واکمنانو او سوبمنانو برسېرونه او پېژندنه یې د دغو خبرو ځلاندي بېلگې او ساري بلل کېږي.

د ژبو او ادبیاتو پوهنځی په داسي ترڅ کي چي د خپل مؤسس او لومړي پیاوړي استاد دغسي نوي څېړني ته په درنه سترگه گوري او په زړه کي ورته ځای ورکوي د لا زیاتو علمي بریالیتوبونو په هیله ورته د یوه روغمن او پتمن ژوند اوږدوالی غواړي.

پوهنوال دوکتور مجاوراحمد زیار
د ژبو او ادبیاتو پوهنځی رئیس

# مؤرخین د لوی مؤرخ له نظره

زما لپاره د خوښي ځای دی، چي د لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي د آثارو د چاپولو او ترتیب په لړ کي د دوی د دغه قیمتي او مهم اثر "نومورکي مؤرخین" په ترتیب او طبع بریالی کېږم.

د افغانستان او حتی منطقې په لیکوالو او مؤرخینو کي استاد حبیبي یو داسي مؤرخ دی، چي په تاریخ، ادب، اجتماعي، سیاسي او ملي تاریخ او ورسره تاریخي جغرافیه کي د ډېري پراخي مطالعې، ژور علمي نظر او دقیقو علمي او مسلکي ابتکاراتو خاوند دی.

لوی استاد لا د طلوع افغان مدیر و (۱۳۰۸ ش څخه وروسته) چي د افغانستان پر اجتماعي تاریخ، لرغوني او معاصر تاریخ یې علمي او مبسوط مقالات کښل او د طلوع افغان پاڼي یې په خپلو مفیدو او مهمو تاریخي او علمي پلټنو ښایسته کولې او افغانان یې د خپل هیواد او خلکو له تاریخي عظمت او برمه خبرول، د تاریخ د ملي قهرمانانو کارنامې او ملي مفاخر یې ورپېژندل.

په دې خصوص کي د لوی استاد لیکني او مقالات لا هماغه وخت د طلوع په پاڼو کي منحصري نه سوې پاته بلکي د خپل علمي، ادبي او مسلکي قوت له پلوه یې د کابل د ادبي انجمن خپرونو ته هم لاره وکړه، په کابل مجله او د کابل په نورو موقوتو خپرونو کي هم خپرې سوې، علمي دنیا او د افغانستان د تاریخ علاقمندان یې د لیکنو له علمي فیضه بهره مند سول.

په ۱۳۱۷ ش کال کي چي لوی استاد د پښتو د نومیالي شاعر خوشحال خان ختک (۱۰۲۲ ـ ۱۱۰۰ هـ ق) کلیات د "خوشحال مرغلري" په نامه چاپ او نشر کړل، د دغه مغتنم او گټور اثر په مقدمه کي یې د تاریخي



پلټنو یو کوچنی ځنگ په کتابي شکل خوندي سو، او کله چي یې د عبدالقادر خان ختک (۱۰۶۳ ـ ۱۱۲۴ هـ ق) او لوی احمدشاه بابا (۱۱۶۰ ـ ۱۱۸۶ هـ ق) (طبع ۱۳۱۸ کندهار، طبع ۱۳۱۹ کابل) دېوانونه خپاره کړل، د دغو دېوانونو په مفیدو مقدمو کي یې هم خپلې تاریخي پلټني او گروېږني ځای کړې.

لوی استاد په ۱۳۲۰ ش کال د پښتانه شعراء لومړی ټوک وکیښ او په ۱۳۲۳ ش کال یې د پښتو د ادبي تاریخ او د پښتنو او افغانستان د ملي او اجتماعي تاریخ گرانبها ذخیره د دانشمند او سترگور مؤرخ محمد هوتک پټه خزانه نشر کړه، علمي او تحقیقي شروح، تعلیقات او مقدمات یې پر وکښل، چي په کتاب کي د راغلو او یادو سوو رجالو، اماکنو، کتبو او تاریخي وقایعو په څېړنه، څرگندونه او پلټنه کي د تاریخ او ادب له محققینو او محصلینو سره پوره مرسته کولای سي. په ۱۳۲۵ ش کال چي د ادبیاتو د پوهنځي چاري هم ور وسپارل سوې، نو یې د پښتو د ادبیاتو د تاریخ د لومړي ټوک په کښلو او نشرولو د افغانستان د تاریخ د مهمو تاریخي مسایلو او پښتو ژبي د تاریخ او قدیمو ادبي او تاریخي روایاتو په باب پلټني، تاریخي څېړني د علم او ادب مینانو ته وړاندي کړې.

تر دغه مهاله وروسته لوی استاد د افغانستان د تاریخ او د ژبو (پښتو ـ دري) د ادب په تاریخ دومره کتابونه وکښل، رسالات او مقالات یې نشر کړل، قدیم تاریخي او ادبي متون یې چاپ کړل چي تفصیل یې دلې نه ځاییږي، خو د ویلو وړ ده چي د دوی قیمتي او ادبي تاریخي لیکني نه یوازي په افغانستان کي ارزښتني او د درناوي وړ دي، بلکي د سیمي په هیوادو او حتی بین المللي علمي محافلو کي هم په درنه سترگه ورته کتل کیږي، دانشمندان او محققین استفاده تري کوي.

لوی استاد د خپلو دغو علمي او ادبي او تحقیقي هڅو او زیارونو په نتیجه کي تر سلو زیات مستقل تاریخي، ادبي او علمي کتابونه د پنځو سو په شاوخوا کي علمي رسایل او تر درو زرو زیاتي تحقیقي او علمي مقالې د علم او ادب دنیا ته وړاندي کړي دي چي د افغانستان، سیمي او نړۍ فرهنگي او ثقافتي تاریخ ویاړ په کوي.

د لوی استاد ادبي او تاريخي او نور علمي آثار نه يوازي د ګران هيواد افغانستان د علمي مؤسسو او فرهنګي ادارو له خوا خپاره سوي دي، بلکي د سيمي د هيوادو علمي او فرهنګي مؤسسو او د بين المللي محافلو،علمي مجامعو هم د دوی مفيد او ګټور آثار خپاره کړي دي.

د پښتو او دري ژبو د تاريخ ادب په باب د ډېرو مهمو او علمي ګڼو مقالو او کتابو تر څنګه لوی استاد د افغانستان د ملي، اجتماعي او سياسي تاريخ په مختلفو څنګونو ډېر زيات مقالات کښلي او د لرغوني او معاصر افغانستان تاريخي جغرافيا يې په مغتنم ډول د مقالو او رسالو په ترڅ کي هر اړخيزه څېړلې ده، د دغو مقالاتو يوه درنه برخه د آريانا په مجله او نوري يې د هيواد په نورو موقوتو خپرونو او د سيمي د هيوادو په موقوتو علمي نشريو کي خپرې سوي دي. له دغو رسالاتو او مقالاتو سربېره د استاد تاريخي مهم او د يادوني وړ کتب دا دي:

- افغانستان بعد از اسلام
- تاريخ مختصر افغانستان
- افغانستان در عصر ګورګانيان هند
- د افغانستان تاريخي پېښليک او نور ...

د نوای معارک، فضايل بلخ، طبقات ناصري او زين الاخبار ګرديزي، شروح، تعليقات او مقدمات هم دوی کښلي دي.



د تاريخي مدارکو، منابعو، وقايعو او اسنادو په څېړنه کي د استاد د څېړني روش او عمومي ميتود نهايت پر علمي او تحقيقي شهادتونو او علمي استنتاجونو ولاړ دی.

د معاصري تاريخ ليکني ميتودونه په نقد او ارزيابۍ ولاړ دي او مؤرخ بايد خپلو ټولو تر واک لاندي ماخذو، مدارکو، کتبي اسنادو او نورو خورو ورو پاڼو ته د نقد او کره کتني په سترګه وګوري، او کره او کوټه سره بېل کړي. د اوسنۍ زماني پلټونکی مؤرخ دې ته اړ دی چي د خپلو ټولو



خبرو اسناد وښيي[1] د لوی استاد په ټولو ليکنو کي دغه معاصر او پر علمي معايير برابر روش ليدل کيږي. لوی استاد د وقايعو په تحليل کي د ډېر دقيق او مبتکر او منقد نظر خاوند دی، هره پېښه او هره تاريخي او اجتماعي پديده د اسنادو، ماخذو او علمي مشهودو دلايلو په رڼا کي څېړي.

د تاريخ او ادب په څېړنه، پلټنه او ګروېړنه کي د دوی اتکاء په خطي او معتبرو چاپي متونو، د لرغونپوهني د تحقيقاتو په نتايجو، ډېرليکونو، مسکوکاتو او نورو لرغونو کلتوري او تاريخي مواريثو بنا ده.

لوی استاد پوهاند عبدالحی حبيبي د افغانستان او پښتنو د تاريخ د ببلابيلو برخو له څېړني سربېره د مختلفو دورو د مؤرخينو پر آثارو کره کتني او علمي نقادانه تبصرې هم کړي دي، د قديمو او معاصرو مؤرخينو تېروتني او زياتي، کمي يې ښوولي او د علمي اسنادو، مدارکو او شواهدو پر بنا يې د مؤرخينو پر ليکنو حاشيې او شرحي کښلي دي او همدارنګه يې د مستشرقينو تېروتني هم د تاريخ په خصوص کي يادي کړي او سمي کړي دي[2]. د استاد د دغه ډول ليکنو ځيني برخي په کتابو کي او ځيني يې هم د مقالاتو په شکل په علمي خپرونو او نشريو کي چاپ سوي، چي د څېړنو دغه برخه د استاد د تاريخي پلټنو او تاريخ نګرۍ يو ښکلی او جلا باب دی.

د افغانستان او پښتنو د مؤرخينو پر آثارو له تبصرو او کره کتنو علاوه استاد د دغو مؤرخينو د کتابو او آثارو د معرفۍ هڅه کړې ده په دې سلسله کي استاد د رهنمای تاريخ افغانستان[3] په کښلو سره د افغانستان او پښتنو د تاريخ ۵۸۰ کتابونه او مؤرخين لنډ لنډ معرفي کړي دي چي دا دی په دې کتابګوتي کي هم د افغانستان او پښتنو ۱۳۸ تنه مؤرخين او د

[1] عبدالحسين زرين کوب، تاريخ در ترازو ـ ص ۱۶۰ ـ ۱۶۱، طبع تهران، ۱۳۵۴ ش.
[2] وګورئ! آريانا مجله د ۱۳۵۹ کال ۱ ګڼه ۵۹ ـ ۶۶.
[3] د دغه کتاب لومړی ټوک چي د افغانستان د تاريخ ۵۸۵ خطي او چاپي کتابونه پکښي معرفي سوي، په ۱۳۴۸ کال د تاريخ او ادب ټولني له خوا (۱۴۵) مخه چاپ سوی دی.

هغوی تاریخي او یا تاریخي ارزښت لرونکي آثار معرفي سوي او د افغانستان او پښتنو د تاریخ او ادب علاقمندانو ته وړاندي کیږي.

ځرنګه چي د دغه کتاب زیاتره مؤرخین د پښتني تاریخ په باب آثار او تالیفات لري او زیاتره هم پښتانه دي نو غوارم چي په پښتنو کي د تاریخ لیکني په سیر او هم د پښتنو د تاریخ په منابعو څو لنډ ټکي ځرګند کړم :

**په پښتنو کي د تاریخ لیکني سیر :**

کله چي موږ د خپلي ژبي په کتبي آثارو کي تاریخي آثار پلټو نو له دوه ډوله تاریخي آثارو سره مخامخ کیږي : (۱) تاریخي کتابونه. (۲) تذکري.

پښتو او پښتانه د تاریخ اهمیت او د خپل ملت او وطن او خلکو د کارنامو مېړانه او نورو اجتماعي، سیاسي او ملي حوادثو او وقایعو ضبط ته متوجه وو. نو په دې برخه کي یې هم د تاریخ مستقل کتابونه او هم د ادبي آثارو تذکرې کښلي چي په ضمني توګه ځینو تاریخي وقایعوُ ته پکښي نغوتي سوي او یا هم ځیني وقایع پکښي څېړل سوي دي. د تذکره نګارۍ له پلوه زموږ ژبه او ادب کابو اته سوه کلنه سابقه لري او زموږ لومړنۍ لاس ته راغلې تذکره د سلېمان ماکو تذکره ده چي په ۶۱۲ هـ ق کال په ارغسان کي کښل سوې، وروسته موږ د پښتو د ادبي تاریخ داسي منظمه تذکره نه ده تر لاسه کړې او یَوازي د محمد هوتک پټه خزانه زموږ بله منظمه تذکره ده چي په ۱۱۴۲ هـ ق کال په کندهار کي کښل سوې ده. دغه دواړې تذکرې خاص ابتکارونه لري، ځرګندوني یې د پښتو او افغانستان د تاریخ په څېړنه کي د لومړي لاس موادو حیثیت لري. دغه رنګه مستقل تاریخي کتابونه چي په ضمني توګه ادبي مآثر هم پکښي غونډ دي د ۶۵۰ په حدودو کي زموږ په ژبه کي کښل سوي دي. له دې جملې څخه تاریخ سوري، اعلام اللوذعي فی اخبار اللودي، لرغوني پښتانه، غرغښت نامه او نور یادولای سو، چي سترګور او دانشمند مؤرخ او تذکره نګار محمد هوتک یا لیدلي او یا یې نومونه تر موږ پوري را رسولي دي او د پټي خزانې په کښلو کي یې بالواسطه یا بلا واسطه د ماخذ په توګه ترې استفاده کړې ده[1].

(۱) محمد هوتک پټه خزانه : ۱۶، ۱۵، ۱۸، ۱۴، ۳۴، ۳۵، ۴۰، ۴۴ مخونه او نور څلورم چاپ، ۱۳۵۷ ش کابل د ادب پوهنځی.



همدارنګه د خواجو ملیزي تاریخ افاغنه (۱۰۳۱ ـ ۱۰۳۳ هـ ق تالیف)، تاریخ مرصع، تواریخ حافظ رحمت خاني، هغه مهم تاریخي آثار دي چي د پښتنو د تاریخ د ډېر تیاره ځنګونه روښانوي. زه دلې د ټولو تاریخي کتابو نومونه ځکه نه اخلم چي لوی استاد پوهاند حبیبي په دې رساله کي مفصل معرفي کړي دي، خو څه چي زه یې پر خبرو کولو آرزو لرم دا دي چي د پښتو ژبه د لیکل سوو تاریخي آثارو په جمله کي سعادتنامهٔ افغاني هغه مهم تاریخي اثر دی چي تر یوه دوو وروستیو کالو دمخه یې چا نوم نه و اخیستی، او دا دی د خان روښن خان د یادونو له مخي د لوی استاد په دې اثر کي هم معرفي کیږي. دغه تاریخي اثر د خپل تاریخي ارزښت تر څنګه ادبي ارزښت هم لري، او د کتاب نثر زموږ د نثر د تاریخ په څېړنه کي نه سي هېرېدای. د سعادتنامهٔ افغاني نثر دا دی :

"پښتور ته راغلي پښتانه ټول درې کوره دي او بعضي قبیلې د دې دریو قبیلو سره یو ځای اوسي چي دوی ورته حصه لکه د ورور ورکړې ده خو دغه همسایه دي او دا لویي کورنۍ درې دا دي : اول خیښي، دویم غوري، دریم کرلاني اوس به د هر یو کور تفصیل بیانیږي چي دا دي :

تفصیل د خیښي دا دي یوسفزي ګګیاني او ترکاني چي دا وخت په لغمان کي میشته دي. دا د خیښي اولاد دي، مامدزي (محمدزي) چي په اشنغر کي اوسي، دا د زمنند اولاد دي، د خیښي تره ږ مګر خیښي لکه د ورور ځان سره نیولي دي ..."[1].

د خان روښن رایه دا ده چي دغه تاریخ تر تواریخ حافظِ رحمت خاني (۱۱۸۱ هـ ق تالیف) دمخه لیکل سوی دی، له دې خبري څخه ښکاري چي دغه تاریخ به د دولسمي پېړۍ په اوایلو کي کښل سوی وي نو یې نثر د خپل ادبي قوت او سلاست له پلوه د دولسمي پېړۍ له ښو نثرونو څخه ګڼل کېدای سي او موږ به یې د خپل نثر په تاریخ کي ستایو.

(۱) پښتو مجله د ۱۹۷۹ ع کال ۱۱ ګڼه ص ۵۰.

زموږ په ژبه کي خو د تاريخ کښل کابو اته سوه کلنه سابقه لري مگر مولوی محمداسمعيل هزاروي د قاعدهٔ افغاني [1] په مقدمه کي کښلي دي :

"پوشيده نماند که در کتب تواريخ افغانی چنان يافته شده است که اول کسيکه در افغانی تصنيف شروع نموده خواجه محمد نام شخصی بود که در اوايل سال نهصد هجری کتابی مشتمل بر آمدن قوم افغان به سمت پشاور و واقعاتی که در مبادی بايشان روی داده تصنيف کرد"[2].

دا چي موږ د نوموړي مولوی د يادښت له مخي يو بل قديم مؤرخ او د پښتو ليکوال پېژنو سمه او ښه خبره ده، مگر دا چي کښلي يې دي چي دی لومړنی مصنف دی دا خبره سمه نه ده دمخه يوازي د تاريخ په خصوص کي د شيخ ملي دوتر[3] او تر دغه دوتر دمخه تاريخ سوري، تذکره الاوليا، لرغوني پښتانه او نور کتابونه لرو چي يا په خپله کتابونه او يا يې هم مواد او روايات تر موږ پوري رارسېدلي دي.

د پښتنو د تاريخ منابع :

د پښتنو د تاريخ په کښلو کي له کتبي تاريخي او دې ته ورته آثارو سربېره ډېرليکونه د لرغون پوهني له کشفياتو څخه د تر لاسه سوو مدارکو او متفرقو اسنادو څخه د لومړي لاس موادو په توگه کار اخيستل کېدای سي.

همدارنگه زموږ ادبي آثار د تاريخ د کښني لپاره له مهمو موادو څخه گڼل کيږي، که څه هم دغه آثار اساساً د نورو هدفونو او غرضونو لپاره ايجاد سوي، ويل سوي او يا کښل سوي او د تاريخي وقايعو د ضبط منظور نه دي رامنځته سوي، خو د خپلو مقاصدو د شرح په ترڅ کي يې ځای ځای داسي

[1] قاعدهٔ افغانی په ۱۸۶۷ ع کال ۹۶ مخه د هنري بکټ انگرېز په غوښتنه د پېښور د جيل په مطبعه کي چاپ سوې ده.

[2] قاعدهٔ افغانی ص ۲.

[3] پوهاند عبدالحی حبيبي، د پښتو ادبياتو تاريخ ـ ج ۲، ص ۲۳۵، ۱۳۴۲ کال چاپ، پښتو ټولنه.



يادوني او تاريخي مطالب تر لاسه کيږي چي زموږ د تاريخ په ليکلو کي ترې استفاده کولای سو [1] زموږ ليکنی او گړنی ادب دواړه له دې پلوه غني دی.

(۱) گړني ادب :

زموږ په گړني ادب کي لنډۍ، سروکي، غاړې، سنځرخيلي ناري[2] د هوتکو ناري[3] داسي سندري دي چي د پښتو د ملي، اجتماعي او کلتوري تاريخ په ليکلو کي له پامه نه سي غورځېدی او د لومړي لاس مهمو آثارو په توگه ترې استفاده کېدای سي.

(۲) ولسي سندري :

له دغو سندرو څخه چاربيتې، بدلي او کسرونه داسي مواد دي چي هره سندره د يوې مهمي تاريخي واقعې په شننه او څرگندونه کي له مؤرخينو سره تر هره بله ماخذه زياته مرسته کوي، خو له بده مرغه چي زموږ د دغو اولسي سندرو قديمي بولگې د زمانې سړو سېليو ورسره وړي دي او يوه قديمه سندره يې هغه د بابا هوتک (۶۶۱ ـ ۷۴۰ هـ ق) ويلې او د پټې خزانې پاڼو تر موږ پوري رسولې ده[4] دغه سندره د پردو تاړاکگرو په وړاندي زموږ د مېړني اولس قهرمانانه مبارزې څرگندوي، تر دې بدلي وروسته د ډېري مودې دغه ډول سندري له موږ سره نسته، خو هغه چاربيتي او بدلي چي دارمستتر (۱۸۴۹ ـ ۱۸۹۴ ع) د پښتونخوا د شعر هارو بهار [5]د کوټې سيد محمدعمر په گلشن اشعار افغانی[6] مرحوم نصر په تاريخي چاربيتې [7] او څېړندوی خدمتگار په تور بريښ [8] کي ضبط کړي دي داسي

[1] پوهاند عبدالحی حبيبي تاريخ نويسي در افغانستان، آريانا ۲۶ کال، ۴ گڼه ص ۳ ـ ۱۳۴۷ کال.

[2] پروفيسور ولي محمد سيال کاکړ، پښتو او پښتانه په سهيلي پښتونخوا کي، ص ۳۲۴ ـ ۳۳۴ د ۱۹۷۶ ع کال د کوټې چاپ.

[3] حبيب الله رفيع، د خلکو سندري ۱۳۳ ـ ۱۵۹ مخونه د تاريخ او ادب ټولنه ـ ۱۳۴۹ ش کال چاپ.

[4] پټه خزانه ص ۵ ـ ۶.

[5] دارمستتر، د پښتونخوا د شعر هار و بهار ۱ ـ ۷۴ مخونه ۱۳۵۶ ش کال چاپ ـ پښتو ټولنه.

[6] سيد محمدعمر ـ گلشن اشعار افغانی (خطی) ص ۵۲، ۷۶ او نور ...

[7] تاريخي چاربيتې ۳ ـ ۱۵ مخونه ـ ۱۹۵۳ ع کال ـ پېښور.

[8] تور بريښ ۷۳ ـ ۱۴۵ مخونه ۱۳۴۷ ش کال.

بدلي او چاربيتي دي چي د انګرېزي امپرياليستي لښکرو د تار او تاراک او
يرغل په مهال کي د زړه ورو پښتنو قهرمانانه مبارزي، سربښندني او مېړاني
پکښي ستايل سوي. د دښمن تيري، د خاينينو کرغېړن اعمال او د دوی
ماتي او رسوايي يې پکښي بيان کړي دي او په رښتيا چي هره سندره يې د
ملي تاريخ يو باب دی.

دغه رنګه په کسرونو کي د انګرېزي تاراک له غندني[1] پرته د مروتو
او ختکو مروتو او وريرو مروتو او يوسفزو د شخړو او لانجو په باب مواد
سته[2] چي زموږ د اولس د مختلفو قبيلو د تاريخ په کښلو او من حيث
مجموع د پښتو د تاريخ په کښنه کي د مؤرخينو په ښه ورځي.

له ګړني ادب، اولسي سندرو او کسرونو سربېره چي زياتره يې شفاهي
شکل لري زموږ ليکني ادب او ادبي آثار هم د تاريخي موادو د درلودلو له
پلوه غني دی. زموږ د مختلفو شاعرانو په دېوانونو، حماسي منظومو، د
روحاني اشخاصو په مناقبو او جنګنامو کي د پښتنو د سياسي، اجتماعي او
ملي ژوند د تاريخ په باب بېلابېلو دورو تاريخي مواد تر لاسه کېدلای سي،
زه دلې پر دغو ټولو ادبي آثارو بحث نه کوم ځکه پر دغو موضوعاتو جلا جلا
پنډ پنډ کتابونه ليکل کېدای سي خو څه چي زه دلې کاږم صرف يو اجمال دی.

**(۱) د شعراوو په دېوانونو او نورو منظومو آثارو کي :**

د پښتنو شعراوو له ډلي څخه د خوشحال خان آثار د تاريخي
موادو د خوندي کولو له پلوه ډېر غني دي، د خوشحال په کلياتو کي د ده
ځيني غزلي، قصايد[3] او ټوټې تاريخي وقايع شرح کوي، دغه ډول د ده په

(۱) د مروتو کسرونو يوه ناچاپه خطي مجموعه د پېښور په پښتو اکېډيمي کي په
۳۶۲ نومره قيد ده په دغه مجموعه کي ځيني داسي کسرونه هم سته چي له
انګرېزانو سره د پښتنو د جګړو بيان کوي، لکه په ۲۱ مخ کي د (کنډي) کسر چي د
غازي محمداکبر خان د توري او مېړاني په ستاينه کي ويل سوی دی.

(۲) د مروتو کسرونه ۱ _ ۱۲۱ مخونه ۱۹۵۹ کال چاپ پېښور.

(۳) د خوشحال مرغلري ۵۶۲ _ ۷۰۸ مخونه د ۱۳۱۷ ش کال چاپ کندهار، د دغي
برخي په اکثرو منظوماتو کي تاريخي وقايع رانغښتل سوي دي.



مثنوياتو کي سواتنامه[1] او فراقنامه[2] دغه خصايص لري.

فراقنامه خوشحال خان د خپل حبس[3] په زمانه کي کښلې ده په دې
کتاب کي که خوشحال خان له يوې خوا د خپل وطن، دوستانو او کورنۍ
څخه د لېرېوالي له امله دردوونکي ناري کړي دي له بلې خوا په همدغه
کتاب کي ځيني داسي انتقادي ټوټې او تاريخي منظومات ګورو چي د ده
نقادانه نظر او د ده د کلام عمومي روح ترې څرګنديږي او هم د ځينو مهمو
تاريخي پېښو څرګندونه کوي، د نمونې لپاره د فراقنامې لاندي بيتونه د
کتلو وړ دي :

په خوله شرع شرع نومېږي — دی د شرع حکم کوم وړي
پلار ترلي پادشاهي کا — سل ناحقه ګمراهي کا
دا د خوارو زر آهونه — لور په لور اوجاړ ملکونه
سکه ورونه يې قتل کړي — ده يې مال ګنجونه وړي
د سکه وراره عورته — په ستم کړه فضيحته

(۱) سواتنامه د خان يوه مثنوي ده چي سوات ته له خپل اووه مياشتني سفر څخه
وروسته يې کښلې ده، ټول بيتونه يې ۳۹۱ دي، د تاريخ د يوه څنګ په کښلو کي
له پامه نه سي غورځېدای. دغه مثنوي په ۱۳۵۸ ش کال د لوی استاد پوهاند
حبيبي له ۷۷ مخيزو څرګندونو سره د افغانستان د علومو اکاډمۍ خپره کړه (متن
۷۰ مخ).

(۲) د فراقنامې يوازينۍ خطي نسخه د پېښور په موزيم کي خوندي ده، ۳۵ پاڼې
لري. د دغې نسخې نقل په ۱۳۵۶ کي د محترم همېش خليل په وسيله
زلمي هيوادمل ته رسېدلی دی چي د ده له سمونو، لمنو او سريزي سره يو ځای چاپ
ته چمتو دی.

(۳) د خوشحال خان د حبس او نظربندۍ زمانه (۱۰۷۴ _ ۱۰۷۹ ق) ده، د خوشحال
خان کليات د استاد کامل مقدمه (ص _ س) مخونه، ۱۹۶۰ کال چاپ، خوشحال
خان يو ځای د خپل بند کال داسي ښوولی دی.

زر څلور اويا هجرت ؤ
هغه کال چي بندېوان سوم

(قطعات، ارمغان ص ۶۸۶)

| | |
|---|---|
| زر ناسازي زر فساده | دم وهه له عدله داده |
| په دا هومره قباحت | دم وهه له شريعت |
| په دا هومره رسوايي | دم وهه له پارسايي |
| الحذر له دې زمان | الامان له دې سلطان [1] |

له دي سربېره د خوشحال خان د کورنۍ او زامنو په دېوانو کي د شعر په ژبه موږ داسي نغوتي او يادوني وينو چي د تاريخي وقايعو د ضبط له پلوه ارزښتمني يادوني دي، لکه د هجري (۱۰۴۴ _ ۱۱۰۶ هـ ق) ځيني منظومات[2] او يا هم د سکندر خان ختک هغه منظوم ليک چي يې اشرف خان هجري ته ليکلی دی[3] د خپل ادبي قوت تر څنګه ځيني زموږ په تاريخ کي ارزښتمن او مهم نکات هم رانغاړي.

دغه ډول د مصري خان ګګيانی (۱۱۵۰ ق حدود) په دېوان کي چي کومه قصيده د پردو سپاهيانو د وحشيانه اعمالو او د پښتني کليو د چورولو او لوټولو په باب ضبط ده[4] زموږ د دولسمي پېړۍ د تاريخ په کښنه کي نه سي هېرېدای او يا هم هغه خبري چي د انګرېزي استعمار د مظالمو او چال چلند په باب قاسم علي خان اپريدي (۱۲۳۲ هـ ق حدود) په خپل کليات[5] کي کړي، د ديارلسمي پېړۍ د پښتني مبارزو ځيني تياره ګوټونه روښانوي.

---

(۱) فراقنامه خطي.

(۲) د هجري دېوان د محترم همېش خليل ترتيب او سريزه، ۱۷۱ _ ۱۷۹ او نور مخونه ۱۹۵۸ ع کال _ پېښور.

(۳) دغه ليک او د سکندر ختک نوري غزلي او قصيدي چي تاريخي او ادبي ارزښت لري د ده د دېوان په هغه مخطوطه کي ضبط دي چي په ۱۱۷۶ هـ ق کال د محمدي صاحبزاده لپاره کښل سوي ده. دغه خطي نسخه د مصري خان ګګيانی د دېوان سره په يوه جلد کي ده او د پېښور د پښتو اکيډمی په کتابخانه کي په (۵) نومره خوندي دي. د سکندر دغه ډول منظومات د ده په چاپي دېوان کي نسته.

(۴) وګورئ ! د مصري خان ګګيانی دېوان ۳۱۹ _ ۳۲۱ مخونه د ۱۹۵۹ ع کال د پېښور چاپ.

(۵) د دغه کليات يوه خطي نسخه د پېښور په اسلاميه کالج کي خوندي ده او په دغه کتابخانه کي يوه نومره (۱۹۱۰) ټاکل سوې ده او د دېوان يوه نسخه يې په برټيش موزيم کي هم سته. (د ميکنزي فهرست ص ۸۶)



(۲) مناقب :

د صوفيانو، روحانيونو، د طريقت د مشرانو او نورو صاحب حال خلکو په مناقبو کي د شرقي ژبو ادبيات ډېر کتابونه لري، پښتنانه او پښتو ادب هم په دې خصوص کي تر نورو ژبو پاته نه دي، بلکي دغه ډول مناقب ډېر پکښي ليکل سوي چي د ټولو په تفصيل سره راوړل به دلې بې ځايه وي، مګر هغه مناقب چي تاريخي مواد لري او د تاريخ په مطالعه او کتنه کي د هيرولو نه دي، دلې د ياد مناسبت لري، خو د ليکني د لنډ تنګ چوکاټ له مخي زه دغه ډول مناقب هم ټول نه سواى معرفي کولای او صرف د شيخ رحمکار (۱۰۶۳ ق مړ)، کاکا صاحب، فقير جميل بېګ، ميا عمر څمکني (۱۰۸۴ _ ۱۱۹۰ هـ ق) او اخون الياس مناقب يادوم.

(۱) مناقب رحمکار[1] :

چي شمس الدين بن شيخ زبير (قياس الدين) بن ضياء الدين منظوم کښلي[2] په دې مناقبو کي ځيني داسي ټکي ښکاري چي د تاريخ لپاره د ارزښتمنو موادو حيثيت لري د شيخ رحمکار د وفات په باب يې ويلي دي :

| | |
|---|---|
| تر اتيا کالو قريب | ده حيات درلود مجيب |
| سن د هجر د حضرت | پوره و هغه ساعت |
| پوره درې شپېته زر کاله | سن د هجر و کماله |
| چي خطيب پاس په منبر شه | په خطبه لوستو زړه ور شه |
| دا خوشحال ختک ويلي | په کتاب کي ما ليدي |
| چي په حين کي د وفات | د شيخ جي ولي نبک ذات |
| زه حاضر ومه په ځان | هغه ځاى هغه مکان |

---

(۱) د شمس الدين د مناقب شيخ رحمکار خطي نسخه ۲۳۰ مخه په ۱۸۳ نومره د پېښور په پښتو اکاډيمي کي خوندي ده. د شيخ رحمکار مناقب په پارسي ژبه جميل بېګ هم ليکلي دي (تاريخ مرصع ص ۵۶۲) چي يوه مخطوطه يې په ملي آرشيف کي هم سته. په پښتو ژبه تر شمس الدين وروسته غلام احمد نومي هم نظم کړي دي. (فرهنګ ص ۳۵۴)

(۲) شمس الدين له مناقبو سربېره نور مؤلفات هم لري ښاغلي رفيع په دوهم ټوک ادبي ستوري کي معرفي کړي دي.

چي جمع مه ادا کړله    جنازه مي را اخيستله
تربنه لاندي زه په خان سوم    و مطلب ته شتابان سوم
زما نيت د خاطر دا و    چي وماوته پيدا و
چي زيارت به د صاحب    په ميره کړم عجايب
چي زما د مندن پوله    شيخ صاحب وي زړه قبوله
چي دا اوس د ده روضه ده    په ښه شان عجيبه ده
چي رسيد سوو تر دې ځايه    واړه ستړي شوو نېکرايه
جنازه مو کوزه کړله    موږه خپله دمه کړله
جنازه نه خوزېدله    موږه ډېره خواري کړله

دغه ډول همدغه شمس الدين مناقب جميل بېگ[1] هم نظم کړی دی
د دې مناقبو ډيري پيښي که څه هم په رواياتو مبنی دي خو په تاريخ کي نه
سي هېرېدای، په دغو مناقبو کي د کندهاري غلجي خان د آسونو د تجارت
قصه او بيا له جميل بېگ سره د ده ليدنه او بيا بيرته کندهار ته د هغه تګ
او ... ټولي داسي خبري دي چي د محقق لپاره د غور وړ مواد ګڼل کيږي.
دادين [2] چي د ميا عمر څمکني مناقب يې د ۱۲۱۹ ق د ذوالحجې په آخر
کي نظم کړي[3] د ميا عمر د خوارقو او عاداتو د ښوولو تر څنګه ځيني
تاريخي وقايع هم ضبطوي لکه : د احمدشاه بابا د مستونګ د فتحي بيان
چي څو بيته يې دا دي :

[1] د شمس الدين د مناقب جميل بېګ يوه خطي نسخه له پوهاند دکتور جاويد سره او بله يې د پېښور په پښتو اکيډمي کي سته، ښاغلي رفيع يې متن چاپ ته اماده کړی دی. جميل بېګ د خوشحال خان سکنی ورور و، قبر يې په تنګاړو کي دی، او زيارت يې په فقير بابا مشهور دی، د زيارت پر لوحه يې کښلي سوي دي : "روضهٔ مبارک حضرت فقير صاحب جمال خان برادر حقيقتی خوشحال خان ختک المعروف به فقير صاحب چشتی بتاريخ يازدهم جمادی الاول ۱۱۱۶ ه ... واصل الی الحق شد".

[2] پښتانه شعراء ج ۴، ص ۹۸۴ _ ۹۸۶، ۱۳۵۷ ش کال، پښتو ټولنه.

[3] د دغه مناقب يوه خطي نسخه له ښاغلي سليمي کندهاري سره سته. (وګورئ ! زېری د ۱۳۵۵ کال ۴۲ ګڼه د ۱۳۵۶ کال ۷ ګڼه.)



چي يو ځلي احمدشاه دردران مي    له هراته تلو په لوري د ايران مي
ولي پښې ورته په لاړ د مستونګ خړند شه    دی پښتون څره غيرت و ورته رند شه
هک حيران شه احمدشاه په دغه کار کي    بل پرې ژمی راغی ډېر په دند و کار کي
باري دی عجب پښتو غيرت نيولی    نه پرېږدم زه دا عالم داسي ناولی

شريف نومی شاعر[1] چي د اخون الياس (۱۰۸۶ ق مړ) کوم مناقب (۱۳۲۱ ق تاليف) نظم کړي او يوه قديمه نسخه يې ما ليدلې، د دې مناقبو ځای ځای په تاريخي پيښو څرګندوني موندلي کيږي.

<u>(۳) شاهنامې او جنګنامې او نور دې ته ورته منظوم آثار :</u>

د موجود معلوماتو له مخې د پښتو ادب په تاريخ کي د شاهنامو کښل په دولسم قرن کي پيل سوي دي. حافظ مرغزي (۱۱۲۶ ه ق زوکړی) په ۱۱۷۶ ه ق کال احمدشاهي شاهنامه نظم کړه[2] تر دې وروسته تر څورلسم قرنه ما د پښتو په ادبي تاريخ کي د شاهنامې څرک نه دی ايستلی خو په څورلسم قرن کي احمدګل (۱۲۵۸ _ ۱۳۱۰ ه ق) د امير عبدالرحمن (۱۳۱۹ ه ق مړ) شاهنامه نظم کړېده[3].

په جنګنامو کي هغه جنګنامې چي د پښتني تاريخ په کښلو کي د موادو په توګه ښه ارزښت لري هغه دي چي د پښتنو د ملي مبارزو په دوران کي پښتو ناظمانو او شاعرانو جوړي کړي دي، ددغه ډول جنګنامو په لړ کي دوې متاخري جنګنامې يوه د صاحب الدين ختک جنګنامه چي د "فېروز نامه"[4] په نامه يادېږي او بله هم د دلاور طالب عمرخېل د

[1] تېر هېر شاعران ص ۲۵۲ د ۱۹۶۳ ع کال د پېښور چاپ.

[2] احمدشاهي شاهنامه لومړی ځل په ۱۹۶۵ کال ۲۰۶ مخه د پېښور پښتو اکاډيمی خپره کړه، فاضل استاد پوهاند رشاد پر دغي شاهنامې د پېښور تر چاپ دمخه مبسوط کار کړی و، او زيات شروح او تعليقات يې پر کښلي وو.

[3] فرهنګ زبان و ادبيات پښتو ج ۱ ص ۲۲.

[4] د فېروز نامې خطي نسخه په ۱۱۳۵ ق کال کښل سوې اصل يې ۱۵۸ مخه او نقل يې ۱۷۲ مخه دی نقل يې د پښتو نوميالي ليکوال همېش خليل د چاپ لپاره تيار کړی دی.

"مغل خان جنګنامه" د تاریخي موادو په لحاظ غني دي. ( د دې جنګنامې یوه نسخه د علومو اکاډیمۍ په کتابخانه کې سته). ښاغلي رفیع کار پر کړی دی.

د صاحب الدین ختک فیروزنامه د کتاب د محتویاتو له مخې د سکهانو سره د هغه مهال د ختکو د یوه مشر فیروز خان ختک[۱] د جنګ حالات بیانوي، د فیروز نامې څو بیتونه دا دي :

| | |
|---|---|
| رنجیتـــی نـــومی کـــافر دی | مخ یې ورک شه لوی مضر دی |
| پـه یـوې سـترګې معـذور دی | یـا دجـال دی یـا یـې زوی دی؟ |
| دی یـو سـکه و پـه مـاجي کـې | لکـه مـات لـوښی پچـی کـې |
| نـه یـې قـدر نـه یـې قـار و | د دریـو کلیـو یـو سـردار و |
| زور یـې کـم حکـم یـې سسـت و. | هـر دښمـن پـرې بـالا درسـت و |
| چـې بادشـاه بـه لاړ لاهـور تـه | دی بـه وتـیښ و بـل لـور تـه |
| تـوان بـه یـې نـه لیـده د جنـګ | نور به یې خان کړو نو په ځنګ |

دغه راز دلاور طالب د مغل خان په منظومه جنګنامه کې له انګرېزانو سره د دغه پښتانه د مبارزو او جنګونو قصې او واقعې بیان کړې دي.

د سپیني هغه حماسیات چې د ۱۳۵۵ ق په حدودو کې پر هرات باندي د پردي تاړاک په زمانه کې ویل سوي ټول هغه نظمیات دي چې د خپل ادبي ارزښت تر څنګه ملي او تاریخي ښېګڼي هم لري او د دغه پردي تاړاک او د هرات د مېړنیو خلکو د دفاع او مېړاني په خصوص کې ښې خبري ځني تر لاسه کیږي[۲].

سربېره پر دې د پښتو ادبیات ځیني نور منظوم کتابونه هم لري چې د ځینو نورو مقاصدو لپاره کښل سوي خو د مطالبو په ترڅ کښې ځیني مهم مطالب هم راغلي وي چې د یوې دورې د تاریخي وقایعو په څرګندونه کې د

[۱] د دیوان امرناته په ظفرنامهٔ رنجیت سنګه طبع لاهور کې مې د فیروز خان نوم ونه موند (فهارس و ـ ز مخونه) خو پر هار و بهار باندې د دارمستتر د نوټونو په ۱۱ ـ ۱۲ مخونو کې د ده او د ده د زامنو نومونه یاد سوي دي.

[۲] پښتني مېړمني ص ۷۴ ـ ۸۰ . ۱۳۲۳، پښتو ټولنه.



مؤرخینو او تاریخ د پلټونکو په درد خوري له دغه ډول آثارو څخه یو هم د ملا مست (۹۵۰ هـ ق حدود) سلوک الغزاه دی چې د ځینو پیښو او جنګونو په باب ښه معلومات لري.

لوړ ما څو کتابونه او ادبي منظومې، صرف د مثال په نیامت یادي کړې که نه وي زموږ د فولکلوري،*اولسي او کتبي ادب ډیري پاڼي ځیني مهمي تاریخي څرګندوني لري چې مورخ یې د تاریخي لیکلو پر وخت نه سوای هېرولای.

روایات او شفاهي څرګندوني :

د پښتنو مختلف قبایل، عشایر او نوري ورې څانګي د خپلو شجرو په مورد کې ځیني شفاهي او روایي معلومات لري چې زیاتره یې په انسابو او تاریخونو کې هغسي نه وي نو په همدې اساس زموږ د مختلفو قبایلو دغه روایي شجرې او د دوی د لېږد او کوزنیو په باب د دوی خپل معلومات هم بې ځایه او بې ګټې نه دي همدارنګه زموږ خلک د ځینو مهمو تاریخي وقایعو په باب هم روایتي مالومات لري، چې که راټول او اضافات ترې حذف سي نو زموږ د ملي تاریخ په کښلو کې د یوې منبع په توګه له پامه نه سوای غورځېدای.



د لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي دغه رساله به وکړای سي چې د مؤرخینو، د افغانستان او پښتنو د تاریخ څېړونکو ته د ماخذ او څېړنې په خصوص کې ګټوري لارښووني وکړي، ډېر تاریخي کتب به وروښیي. دغه رساله له تاریخ څېړونکو او پلټونکو سره له مرستي سربېره د پښتو د ادبي تحقیقاتو له پلوه هم ارزښت لري څکه ځیني داسي پښتو تاریخ کتب یې هم را معرفي کړي چې تر اوسه بل ځای یې چا یادونه نه وه کړې.

لوی استاد ته دي خدای ﷻ صحت او عمر ورکي، چې خپلي نوري مفیدي تاریخي، جغرافي، ادبي او علمي څېړني پر پښتنو ولوروي او پښتانه یې د علم له فیضه مستفید سي.

﴿ ۱ ﴾

## سلېمان ماکو د (تذکرة الاولیاء) لیکوال

سلېمان د بارک خان زوی په قوم ماکو صابزی د (۶۰۰ هـ) په شاوخوا کي د کندهار په ارغسان کي اوسېدی. دا مؤرخ، سیاح او گرزند سړی و، دی په خپله لیکي چي په (۶۱۲ هـ) تللی وم او د پښتونخوا په غرو او رغو گرځېدم او د لویانو مراقد مي لیدل او پلټل.

داسي ښکاري چي سلېمان تر دغه مفید او گټور سفر وروسته موفق سو چي د پښتنو د نومورو بزرگانو په احوال کي یوه (تذکره الاولیاء) ولیکي او د دوی ویناوي او اشعار په دې کتاب کي خوندي کړي.[1] دا کتاب متاسفانه اوس ورک دی خو لومړي اته مخه یې ما تر ۱۳۱۹ ش کال دمخه خوشبختانه په کندهار کي وموندل او د هغو مخو عکسونه مې د کابل په سالنامه او په پښتانه شعراء لومړي ټوک کي خپاره کړل.

سلېمان ماکو د پښتنو پخوانی مؤرخ دی او د ده د نفیس او گټور کتاب دغه څو صفحې د پښتو د ژبې او رجالو د تاریخ لپاره داسي مفیدي ثابتي سوي چي د ادب او پښتو تاریخ به یې تر ابده مرهون وي.

سلېمان ماکو یوه سړی او سترگه ور مؤرخ ښکاري، دی د هر پښتانه لوی او نومیالي سړي سوانح او احوال لیکي، وروسته یې د شعر او وینا نموني هم راوړي، نو د ده کتاب یوازي د ولیانو تذکره نه، بلکي د پښتو د شعر او ادب یو ډېره گرانبها مرقع هم ده، وگورئ ذکر سوې سالنامه او د پښتانه شعراء لومړی ټوک.

---

[1] د سلېمان ماکو د تذکرې مقدمه.



﴿ ۲ ﴾

## شېخ کټه د (لرغوني پښتانه) لیکوال

دا مدقق مؤرخ او د پښتنو د یوې خوار لویې علمي او ادبي کورنۍ رکن د شېخ یوسف زوی او د شېخ متي لمسی دی. شېخ متی هغه لوی او معروف د پښتنو نوموړی دی چي په کلات بابا مشهور او اوس یې هم مرقد د کلات پر غونډۍ دی. شېخ متی عارف او عالم او ادیب سړی او په پښتو کي یې په علم او عرفان ډېر شهرت درلود.[1] شېخ متی خپلني کورنۍ ته علم، تقوی، عرفان په ارث پرېښوول او یو کتاب یې هم ولیکه، چي (د خدای مینه) یې نوم و. د ده ځیني اشعار هم پښتنو مؤرخینو رانقل کړي دي.[2]

په دې کورنۍ کي وروسته ډېر علماء، مؤرخین، عرفاء پیدا سول چي موږ یې د روښان او دروېزه او خوشحال خان د علمي کورنۍ په څېر د پښتنو یوه بله لوړه علمي او عرفاني کورنۍ گڼلای سو. په دې مقاله کي زما وظیفه ده چي د دوی تاریخي کتب او خدمتونه ولیکم، نوري علمي او ادبي پلټني یې بېل لیکونه غواړي. شېخ یوسف د شېخ متي تر مړیني وروسته د ده پر علمي او ادبي او روحاني مسند کښېناست او اوه زامن یې درلودل چي له دوی څخه شېخ کټه ډېر مشهور سو او د ده مور بي بي مراد بخته نومېده، چي په خته زمنده وه[3] دې نوموړي عالم د پښتنو د رجالو او مشاهیرو په تاریخ کي یو نفیس کتاب وکیښ چي نوم یې و (لرغوني پښتانه) دا کتاب پښتو وئ، او د پټې خزانې مؤلف محمد هوتک ډېر ځله دا کتاب یادوي او داسي ښکاري چي د دغه مؤرخ یگانه ماخذ هم دغه و. د شېخ کټه د ژوندانه وخت نه دی ښکاره، خو د پټې خزانې په روایت د ده نیکه شېخ متی په (۶۸۸ هـ) وفات سوی دی، ځکه چي د مؤرخینو په اتفاق یوه پېړۍ درو پښتو

---

[1] مخزن افغاني قلمي ص ۲۵۴.

[2] پټه خزانه د کابل طبع.

[3] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۵.

لپاره مقرره ده نو باید د شېخ کټه د ژوندانه وخت هم د (۷۵۰ هـ) شاوخوا وګڼل سي. د شېخ کټه اولاد که څه هم د پېښور په شمالي لتو کي پراته وو، مګر داسي ښکاري چي په خپله دی سیاح سړی و، ځکه محمد هوتک په ښکاره لیکي چي شېخ کټه د محمد بن علی البستي کتاب تاریخ سوري په بالشتان کي لیدلی و [1] بالشتان یا والشتان خو د غور مشهور ښار ؤ، چي په (۱۳۹ هـ) امیر پولاد سوري نیولی ؤ [2] چي د بیهقي په ضبط ګوروالشت [3] او د منهاج سراج د طبقات ناصري په یوه نسخه کي غوروالشت راغلی دی [4] او دا ښار د تکیناباد (د اوسني کندهار حدود) او د غور د مندیش تر منځ پروت و، او د سیستان په تاریخ کي هم والشتان ضبط سوی دی [5] نو چي شېخ کټه والشتان ته راغلی او د غور دغه ښار یې لیدلی و، ښکارېږي چي د وطن شرقي او جنوبي خواوي به یې هم کتلي وي.

د شېخ کټه نفیس تاریخي کتاب (لرغوني پښتانه) چي له نامه څخه یې هم د کتاب اهمیت ښه ښکاري اوس نسته، داسي څرګندېږي چي دغه نفیس کتاب د محمد هوتک لاس ته ورغلی و او د پټې خزانې مهمه ادبي برخه هم له دغه کتابه اقتباس دی. خوشبختانه محمد دا هم لیکلي دي چي د شېخ کټه مهم تاریخي ماخذ هم "تاریخ سوري" وو چي زه به یې بېل ذکر وکړم. د شېخ کټه د اولاد په خصوص کي خوشبختانه خواجه نعمت الله هروي مفصلاً کښلي دي چي ده اته زامن درلوده: د زلو معدورزی له نسه، سلطان ثابت، حاجي، سلیمان، ممی له دوهمي مېنې څخه چي دغه هم زلو نومېده. په ختّه اکازی یوسفزی: ابراهیم، ملک، پاجي. [6]

---

[1] پټه خزانه.

[2] تاریخ سوري د پټې خزانې په حواله.

[3] بیهقي ص ۷،۶.

[4] د راورټي حواشي پر انګلیسي طبقات ناصري.

[5] تاریخ سیستان ص ۲۰۶ _ ۲۰۸.

[6] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۶.



﴿ ۳ ﴾

## شېخ قاسم د (تذکرهٔ اولیاء افغان) لیکوال

دا عارف او عالم هم د شېخ متی له علمي کورنۍ څخه دی، چي پلرونه یې شېخ کټه ته داسي رسي: قاسم د شېخ قدم زوی د محمد زاهد لمسی د میرداد کړوسی د شېخ سلطان کوسی او لکه دمخه چي ذکر سوه سلطان د شېخ کټه زوی ؤ. [1]

د شېخ قاسم مور نېکبخته نومېده، چي د شېخ الله داد مموزي لور او د پښتو شاعره او ډېره لویه عارفه وه چي محمد هوتک د دې اشعار رانقل کوي او لیکي چي په (۹۵۱ هـ) د شېخ قدم په نکاح راغله او په (۹۵۶ هـ) یې شېخ قاسم و زېږاوه او په (۹۶۹ هـ) یې (ارشاد الفقراء) نومی کتاب ولیکه. د دې کتاب نسخه د محمد په روایت د ده پلار داود خان هوتک لیدلې وه [2] او علاوه پر دغه محمد هوتک د (اولیاءِ افغان) له کتابه چي شېخ امام الدین متی زي لیکلی دی هم د دې عالمي مېرمني احوال را نقل کوي.

نعمت الله لیکي چي شېخ قاسم د شېخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله د اولادې له مریدانو څخه وو، او د (۹۵۶ هـ) کال په پسرلي د بډنۍ رود پر غاړه (د پېښور مشرق ته) وزېږېد او په (۱۰۱۶ هـ) وفات سو. [3]

شېخ قاسم په پېښور کي په معرفت او روحانیت مشهور سو او ډېر کلک نفوذ یې وموند، د میرزا محمد حکیم مامورین ځني وېرېده او ویې غوښتل چي دا پښتون عالم او عارف مړ کړي، شادمان خان هغه وخت د پېښور حکمران ؤ او د شېخ قاسم د وژلو نیت یې وکړ، شېخ مجبور سو له پېښوره کندهار ته ولاړ او له دې ځایه د حرمینو په زیارت مشرف او په قادریه طریقه کي داخل سو. تر دې وروسته بیرته د پېښور د واوي ته راغی

---

[1] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۶.

[2] پټه خزانه قلمي ص ۹۸.

[3] قلمي مخزن افغاني ص ۳۰۷.

او خپل علمي او روحاني اقتدار يې ټينګ کړ او په شيخ قاسم سليماني مشهور سو. د مغولو پاچهانو بيا دا شيخ نه پرېښود، د عيسى نومي په چغلى اکبر پاچا دى لاهور ته وغوښت خو شيخ قاسم په لاهور کي تر پېښور لا زيات نفوذ وموند نو جهانګير دى د چنارګړ په کلا کي بندي کړ، او هم هورې له دنيا څخه تېر سو، او مزار يې هم تر اوسه هورې مشهور دى. شيخ قاسم مؤلف او مؤرخ هم دى، د ده تاريخي کتاب (تذکرهٔ اولياء افغان) دى [1] چي د پښتنو روحانيونو احوال يې پکښې ليکلي و، دا کتاب متاسفانه ورک دى او تر اوسه يې په کُتب خانو کي درک هم نسته او نه له چا څخه ما ليدلى دى.

﴿ ۴ ﴾

## شيخ امام الدين د (تاريخ افغاني) ليکونکى

شيخ امام الدين محمد عنايت الله د شيخ کبير بالا پير زوى او د شيخ قاسم لسمى دى چي د شيخ کبير له (۱۲) زامنو څخه دى ډېر شهرت لري، د دوشنبې په مابنام غره د محرم (۱۰۲۰ هـ) د پېښور په بډنى کي وزېږېد، مور يې تاج بي بي د ملک دروېز لور او د خليلو له مشهوري کورنى څخه وه. شيخ امام الدين هم د خپلي کورنى د نورو خلکو په ډول علمي او روحاني نفوذ وموند او د چهارشنبې په مابنام ۲۳ د محرم (۱۰۶۰ هـ) له دنيا څخه ولاړ او په پېښور کي ښخ سو.[2]

دې شيخ يو تاريخي کتاب (تاريخ افغاني) د پښتنو پر احوال او تاريخ په پارسو وليکه، چي قلمي نسخه يې د کابل په ارګ کي وه، د کتاب له مقدمې څخه ښکاري چي شيخ امام الدين سترګور مؤرخ دى او د خپل کتاب تر ليکني دمخه يې د پښتنو ډېر مهم تاريخي کتب لوستلي او د خپل کتاب د ماخذ په ډول يې استعمال کړي دي.

[1] تذکره الابرار ص ۱۸۳ ـ ۱۸۴، مخزن افغاني ص ۲۶۰.
[2] مخزن ص ۳۰۹ ـ د ميا نعيم د قلمي ديوان خاتمه.



هغه کتب چي د شيخ امام الدين ماخذ دي او د خپل "تاريخ افغاني" په مقدمه کې راوړي دي دا دي : روضه الاحباب، مجمع الانساب، اصناف المخلوقات، تواريخ ابراهيم شاهي د مولانا مشتاقي، د خواجه احمد نظامي تاريخ، د شېرشاه احوال چي شيخ عباس سرواني کښلي دي، اسرار الافغاني [1] له دغو کتابو څخه ځيني ماته معلوم او ځيني ورک دي.

﴿ ۵ ﴾

## محمد بن علي البستي د (تاريخ سوري) خاوند

دا مؤرخ هم د وطن له هغو ليکوالو څخه دى چي متاسفانه د ده احوال او کتاب هم تر اوسه لاس ته نه دى راغلى، فقط د پټي خزانې له انکشافه سره دا راته معلومه سوه چي دې مؤلف او مؤرخ يو کتاب د (تاريخ سوري) په نامه کښلى و او د سوريانو د سلطنت احوال يې د اسلام له ابتداء څخه پکښې ليکلي وه. د محمد بستي د ژوندانه وخت او احوال هم نه دي معلوم. فقط دوني ويلاى سو چي دى د بُست د تاريخي ښار اوسېدونکى و ځکه چي د ده کتاب شيخ کټه په بالشتان کي کتلى او په خپل کتاب لرغوني پښتانه کي يې مهم مطالب ځني اقتباس کړي دي، نو دا په ټينګه ويلاى سو چي د شيخ کټه تر عصر يعني د (۷۵۰ هـ) دمخه محمد بستي ژوندى و او په دغه عصر کي هم د ده تاريخ سوري ډېر شهرت درلود ځکه چي شيخ کټه له دغه کتابه ډېر مفيد مضامين را اخيستي دي.

محمد هوتک چي د پټي خزانې ليکوال دى د پښتو ځيني مهم او ګرانبها پخواني ادبي آثار له لرغوني پښتانه څخه را اخلي او دا هم وايي چي د لرغوني پښتانه مؤلف له تاريخ سوري څخه را نقل کړي دي، په پټه خزانه کي دغه لاندېني تاريخي او ادبي مواد د لرغوني پښتانه په ذريعه له تاريخ سوري څخه را نقل سوي دي.[2]

[1] د تاريخ افغاني قلمي نسخه.
[2] د مخو عدد د پټي خزانې د قلمي نسخي دى.

١. د پښتو د ډېر پخواني شعر او د جهان پهلوان امير کروړ سوري احوال له ۱۵ مخه تر ۱۷.
٢. د شيخ اسعد سوري احوال او اشعار له ۱۸ مخه تر ۲۱.
٣. د ښکارندوی احوال او اشعار له ۲۱ څخه تر ۲۵.

گويا په پټه خزانه کي د پښتو قديمه ادبي ذخيره تولـه د شيخ کته په نقل له تاريخ سوري څخه را اخيستل سوې ده او دا راته څرگندوي چي تاريخ سوري يوازي د حربي او سياسي پيښو تاريخ نه ؤ بلکي ادبي رنگ يې هم درلود، او محمد بن علی البستي ډېر باخبره او سترگه ور مؤرخ و، ځکه چي ده د پاچهانو احوال او حربي او سياسي وقايع رانقل کړي او هم يې د دوی د کلام نمونې راوړې دي، هغه قصايد يې په خپل کتاب کي ساتلي دي چي د غوري پاچهانو په دربارو کي به په پښتو ويلي کېدې، له دې څخه ښکارېږي چي تاريخ سوري د سوريانو او غوريانو د عصر يو ادبي او سياسي او حربي تاريخ ؤ که څه هم د دغه تاريخ ژبه واضحاً د پټې خزانې له بيانو څخه نه ښکارېږي، مگر له لوړو اقتباساتو څخه دا څرگندېږي چي تاريخ سوري بايد په پښتو ژبه ليکل سوی وي، ځکه چي درې مهم پښتو شعرونه شيخ کته څني رانقل کړي دي. د تاريخ سوري نسخه اوس غالباً په دنيا کي نسته او د پښتو دغه غوره کتاب لکه نور علمي او ادبي آثار ورک دی. مگر پټې خزانې خوشبختانه د دې گرانبها کتاب نوم او مؤلف او ځيني اشعار او مطالب د لرغوني پښتانه په ذريعه نقل کړي او را ساتلي يې دي.

تر اوسه چي زه معلومات لرم، د دنيا په کتب خانو کي د دې نفيس کتاب کم درک نسته که کم وخت پيدا سي يا يې څرک وموندل سي نو به په رښتيا د پښتوژبې يو گرانبها تاريخي او ادبي اثر لاس ته راغلی وي، پښتانه زلمي دي هر کله تلاښ او پلټنه کوي دا خبره هم بايد هېره نه کړو چي راورټي مستشرق د احمدشاه بابا تر عصر وروسته يو تاريخ مېندلی ؤ چي نوم يې "تذکره الملوک" ؤ د دې کتاب په ماخذو کي يو کتاب "تاريخ سلاطين سوريه" هم دی.[1] مگر دا نه سو ويلای چي دغه سوريه هغه د محمد بن علي تاريخ دی که بل؟

[1] د پښتو گرامر مقدمه ص ۹.



﴿ ٦ ﴾

## احمد بن سعيد اللودي د (اخباراللودي) ليکونکی

دا مؤرخ له هغو خلکو څخه دی چي تر پټې خزانې دمخه مو نه پېژاند، نه يې کتاب راته معلوم ؤ.

محمد هوتک ليکلي دي چي کامران خان په (۱۰۳۸ هـ) خپل کتاب کليد کامراني وکيښ او په دغه کتاب کي يې د احمد لودي له کتابه د ملتان د لودي پاچهانو احوال نقل کړ، احمد د سعيد لودی زوی په (۶۸۶ هـ) يو کتاب کښلی ؤ چي نوم يې و (اعلام اللوذعی فی اخبار اللودی) د محمد هوتک په قول دغه کتاب د کامران خان په لاس کي ؤ او په کليد کامراني کي يې نقل څني کړی دی.[1]

د محمد هوتک له بيانه چي د کليد کامراني په ذريعه يې له اخبار اللودي څخه نقل کړی دی داسي ښکاري چي احمد بن سعيد خپل کتاب د پښتنو پخوانو لودي پاچهانو پر احوال ليکلی دی، دغه کورنۍ د پښتنو مشهور پاچهان دي چي د الپتگين او سبکتگين له وخته (۳۵۱ ـ ۳۶۰ هـ) يې پر ملتان پاچهي کوله، لومړی پاچا يې شيخ حميد لودي ؤ چي تر ده وروسته د ده زوی پاچهي کړله، د سلطان محمود په عصر کي له (۳۹۰ تر ۴۰۱ هـ) چي ملتان يې نيو، د نصر زوی ابو الفتح له دغي کورنۍ څخه پاچا ؤ، پټه خزانه په لوړو حوالو بل سړی هم له دغي کورنۍ څخه راښيي چي شيخ رضي نومېده او د شيخ حميد وراره ؤ، د شيخ حميد د زوی نوم متاخرو مؤرخينو (نصير) کښلی دی مگر د گرديزي زين الاخبار نصر بېلـه (ي) راوړی دی، په پټه خزانه کي هم دغه نوم د کليد کامراني او اخبار اللودي په حواله نصر کښل سوی دی، له دې څخه معلومېږي چي اخبار اللودي هم لکه گرديزي موثق کتاب ؤ محمد قاسم فرشته لومړی مؤرخ دی چي د شيخ حميد لودي کورنۍ پښتانه بولي او د دوی جگړې له سلطان محمود سره

[1] پټه خزانه قلمي ص ۳۰.

لیکي[۱]. وروستني مؤرخین لکه شېرمحمد [۲]او حیات خان [۳] او انګرېز ملیسون [۴] هم د فرشته له قوله سره سم دغه کورنۍ پښتانه ګڼي، پخواني مؤرخین د دوی له قومیته څه نه وایي، مثلاً ګردېزي [۵]او بن اثیر [۶] او ابن خلدون [۷] توله د سلطان محمود او د دوی جګړې او د دغې کورنۍ د الحاد کیسې ذکر کوي خو داسې نه وایي چې دوی څوک وو پښتانه وو که یه؟ د اوسنۍ زمانې محقق لیکوال علامه سید سلیمان ندوي هندي لیکي چې: د دې کورنۍ په پښتنواله کې شک دی، ځکه چې محمد قاسم فرشته دوی ته له کمه سنده پښتانه ګڼلي دي، خو دوی اصلاً عرب او د جلم بن شیبان عربي نژاد حکمدار له نسله دي چې تر (۳۴۰ هـ) وروسته د ملتان لومړي قرمطي پاچا دی [۸]، د پټې خزانې تر انکشاف دمخه یقیناً د دې کورنۍ په افغانیت کې اختلاف وو، ځکه چې فرشته هم خپل سند نه دی ښوولی، او لکه علامه سید سلیمان ندوي چې لیکي د دوی نومونه هم ... عربي دي، مګر دغه تاریخي اشتباه د پټې خزانې له لیدلو څخه هیسته کېږي، ځکه دا کتاب د اخباراللودي په حواله د دغې کورنۍ د دوو تنو نصر او رضي پښتو اشعار رانقل کوي او دا ثابتوي چې دوی پښتانه او ژبه یې هم پښتو وه او اخباراللودي د دې مشهورې کورنۍ تاریخ وُ چې متاسفانه اوس ورک دی، او که پټه خزانه نه وای پیدا سوې دغه تاریخي حقایق به هم مکتوم پاته وو او د ملتان لودي کورنۍ به عربي کېدله.

[۱] فرشته ص ۱۷ _ ۲۷.
[۲] خورشید جهان ص ۶۷.
[۳] حیات افغاني ص ۴۵.
[۴] تاریخ افغانستان ص ۴۴.
[۵] زین الاخبار ص ۵۵.
[۶] الکامل ج ص ۱۳۲.
[۷] ابن خلدون ج ۴ ص ۳۶۶.
[۸] تعلقات هند و عرب ص ۳۲۸.



﴿ ۷ ﴾

## دوست محمد کاکړ د (غرغښت نامې) لیکونکی

دوست محمد د بابړ خان زوی او د پښتو شاعر او مؤرخ دی چې په (۹۱۲ هـ) هرات کې وُ او په (۹۲۹ هـ) یې غرغښت نامه نظم کړه او د دغه نامور پښتون د ژوندانه احوال او حکایات یې پکښې وکښل، محمد هوتک دغه کتاب لیدلی وُ او لیکي چې دا یو درسي کتاب وُ کوچنو به لوست.[۱]

دوست محمد لیکلي دي چې زما پلار بابړ خان (تذکرهٔ غرغښت) نظم کړې وه چې پلار مې مړ کېده زه نه وم، وروسته چې راغلم دغه کتاب ضایع سوی او له منځه تللی وُ مګر زما یې اکثر مضامین په یاد وو، روایات مې تول ویلي وو هغه روایات و قصص ما بیرته تول نظم کړل او نوم مې (غرغښت نامه) کښېښو. غرغښت نامه د. محمد هوتک په لاس کې وه، په پټه خزانه کې یې یو حکایت څني رانقل کړی دی، او هم یې د زرغون خان نورزي احوال له غرغښت نامې څخه کښلي او د دغه مرحوم شاعر یو مثنوي ساقي نامه یې هم له غرغښت نامې اقتباس کړې ده. [۲] داسې ښکاري چې دوست محمد کاکړ سیاح او ګرزند سړی وُ، ځکه په (۹۱۲ هـ) چې هرات له تی په کجران کې یې د زرغون خان دېوان له ملا ایوب تیسنی څخه موندلی او د دغه شاعر احوال او اشعار یې څني رانقل کړي وو. [۳]د پټې خزانې له مقتبساتو څخه دا استنباط کولای سو چې غرغښت نامه یو ادبي موثّق تاریخ وو چې د غرغښت له احواله ماسوا د نورو شاعرانو او رجالو احوال او اشعار هم پکښې وو، افسوس چې دغه کتاب هم لکه نور ګرانبها د پښتو ادبي او تاریخي آثار له منځه ورک دي او فقط پټه خزانه یې د څینې مرغلرو سراغ راکوي.

[۱] زرغوّن خان د غرغښت نامې په قول په (۸۹۱ هـ) په هرات کې وو او په (۹۲۱ هـ) د کندهار په دیراوت کې وفات سو. (پټه خزانه)
[۲] پټه خزانه.
[۳] پټه خزانه.

## ﴿ ۸ ﴾

## شېخ بستان بړېځ د (بستان الاولياء) ليکونکی

د دې مؤرخ او شاعر احوال محمد هوتک هسې کښلي دي : "شېخ محمد بستان په قوم بړېځ په ښوراوک کي يې کور وو ، د ده پلار محمد اکرم د خدای ولي ؤ او د ښوراوکه راغی د هلمند پر غاړه په يوه کوډله کي اوسېد ، شېخ بستان په ځواني ولاړ هندوستان ته او هلته به ښار په ښار گرځېد ، هغه وخت چي وطن ته راغی په (۹۹۸ هـ) يې د اولياء الله په بيان د بستان الاولياء کتاب وکيښ او زما پلار (داوُد خان) دغه کتاب په ښوراوک کي د حسن خان بړېځ په کور کي ليدلی ؤ، چي په دې کي شېخ بستان د ډېرو پښتنو اولياوو حالونه او کرامتونه کښلي او ډېر ډېر اشعار يې هم رانقل کړي و له نورو شاعرانو او خپلو شعرو څخه ..."[1] د محمد هوتک له دغه بيانه تاسي په ښه ډول معلومولای سئ چي بستان الاولياء فقط د روحانيونو تاريخ نه ؤ، بلکي دَ پښتنو د رجالو اشعار او احوال هم له بستان الاولياء څخه را نقل کوي [2] او دا خبره ښه زبادوي چي دغه کتاب د پښتو ادبي تاريخ هم و.

نعمت الله هروي چي د شېخ بستان معاصر دی، د ده شرح حال په مخزن کي ليکي چي ځيني جملې يې دا دي :

"آن احسن عبادالله شيخ بستان بړيځ در ابتدای جوانی از روه به هندوستان آمد ، در قصبهٔ سمانه سکونت اختيار کرد ، و خود را در لباس تجارت مخفی ميداشت. وباندک دست مايهٔ بيع و شکرا ميکرد ... و چشمان شريفش هر گز از اشک خشک نبود ... و اکثر اوقات اشعار پښتو را بصورت حزين دردناک که سنگ را بگريه آرد ميخواند ... کمترين محرر اين تاريخ در سفر در پاکه کرده بود ، در خدمت ايشان رفيق بود شب و روز

---

[1] پټه خزانه ص ۲۸.

[2] پټه خزانه ص ۲۶.



اکثرخوارق بنظر درامد ... چون معاودت نمود به احمد آباد گجرات رسيدند روزی بمن فرمودند که وقت من به آخر رسيده و بيماری اسهال عارض شد به تجهيز و تکفين خواهی پرداخت ... بعد بتاريخ (۱) شهر ربيع الثانی روز جمعه (۱۰۰۲ هـ) بعد از نماز ظهر به محبوب اصلی واصل شد ..."[1]

د نعمت الله دغه بيان چي د ده مشاهدات دي د شېخ بستان عرفاني او ادبي مقام راښيي، نور احوال او اشعار يې هم خوشبختانه پټې خزانې راساتلي دي.

## ﴿ ۹ ﴾

## علي محمد کندهاری دَ (حالنامې) ليکوال

دا سړی د ابوبکر کندهاري زوی او غالباً په قوم شينوار او د پير روښان د کورنۍ مخلص او خادم ؤ، په خپله بايزيد روښان (۹۳۱ _ ۹۸۰ ق حدود) خپل حال په پارسي ژبه په حالنامه کي تر (۹۸۰ ق) دمخه کښلی ؤ، خو د (۱۰۵۰ ق) په شاوخوا کي علي محمد چي ځان د روښان د کورنۍ خدمتگار او مريد بولي، حالنامه يې نوې تحرير او بشپړه کړه او د روښان د کورنۍ د نورو رجالو احوال يې ور زيات کی. د هند د علي گړ په کتابخانه کي د حالنامې يوه خطي نسخه سته چي (۵۲۶) مخه ده او دا کتاب موږ ته د روښاني نهضت ارزښتمن معلومات راکوي.

## ﴿ ۱۰ ﴾

## اخوند درويزه د (مخزن الاسلام او تذکرې) ليکونکی

مشهور عالم دی چي د زرم هجري کال په شاوخوا کي ژوندی ؤ، د جيون بن جنتي له نسله او پلار يې گدائی د سعدي زوی نومېدی، دوی په خپله په کندز کي اوسېدل خو درويزه شرقي غرو ته راغی د ملک دولت

---

[1] قلمي مخزن افغاني ص ۲۵۰.

ملي زي خور یې وکړه او د پېښور په شاوخوا کې میشته سو.[1] اخوند درویزه او کورنۍ یې په پښتو کې ډېر شهرت لري ده خپل کتاب مخزن الاسلام او په پارسو کتاب (تذکره الابرار والاشرار) کې د خپل عصر احوال ولیکه، وروستنی کتاب په (۱۰۲۱ هـ) تمام سوی دی (ارشاد الطالبین) هم په فقه کې د ده دی، اخوند درویزه که څه هم ملا دی مؤرخ نه دی، خو د ده دوه کتابونه مخزن او تذکره داسې ډېر مضامین لري چې د پښتنو په تاریخ او ادب او د رجالو په احوال او تاریخ کې استفاده ځني کېږي، نو ځکه دی د مؤرخینو په ټولۍ کې هم ګڼلای سو.

اخوند درویزه (۹۴۰ _ ۱۰۲۸ هـ . ق) په پېښور کې مړ او هم هورې ښخ دی[2] د ده کورنۍ د پښتنو له مشهورو ادبي او علمي او روحاني کورنیو څخه ده، چې د پښتو د ادب په تاریخ کې د دوی مقام ښکاره دی. مخزن الاسلام لومړی پلا د اخوند دروېزه ننګرهاري زوی اخوند کریمداد (۱۰۷۳ هـ . ق مړ) په (۱۰۲۴ هـ . ق) کال راټول کړی دی، د مخزن نوی چاپ پېښور (۱۹۶۹ م) او د تذکره الابرار چاپ (۱۳۰۹ ق)

﴿ ۱۱ ﴾

## کامران خان سدوزی د (کلید کامراني) مؤلف

دا مشر هم د پټې خزانې په ذریعه د یوه مؤلف او مؤرخ په ډول پېژنو محمد هوتک د شیخ رضي لودي په احوال کې هسې لیکي چې : "کامران بن سدو خان په ښهر صفا کې په (۱۰۳۸ هـ) یو کتاب وکیښ چې کلید کامراني یې نوم وٚ په دې کتاب کامران له کتابه د شیخ احمد بن سعید اللودي چې په (۶۸۶ هـ) یې کښلی او نوم یې اعلام الوذعي في اخباراللودي دی هسې نقل کا ... [3]"

[1] تذکره الابرار والاشرار ص ۳۱ _ ۱۰۵ _ ۱۰۷.
[2] تذکرهٔ علمای هند ص ۵۹.
[3] پټه خزانه ص ۳۰.



کامران خان سدوزی د پښتنو له خورا نوموړو خلکو څخه دی او د دوی کورنۍ په کلو کلو پر کندهار حکمراني او پاچهي کړېده، د کامران خان پلار هغه معروف سدو خان دی چې د سدوزو د پاچهانو ټبر ټول د ده اولاد دی، د سدو پلار عمر خان وٚ، د عمر پلار معروف بن بهلول بن کاني بن بامی دی چې دغه خلک په کندهار کې ډېر مشهور وو د سدو پلار عمر د صفویانو په عصر کې د کندهار مرزبان او واکمن وٚ، په خپله سدو خان د (۹۶۵ هـ) په ذیحجه کې زوکړی او (۷۵) کاله ژوندی او د کندهار واکمن وٚ سدو پنځه زامن درلودل : خواجه خضر خان، مودودخان، زعفران خان، کامران خان، بهادر خان[1] لکه له پټې خزانې څخه چې ښکاره سوه، کامران خان عالم او مؤرخ او لیکوال واکمن وٚ، د سدو خان تر مرګ وروسته د ده مشر زوی خضرخان پر کندهار واکمن سو، او تر ده وروسته یې زوی چې خداداد سلطان نومېدی د اورنګزېب له درباره هم د کندهار په حکمداري پېژندل سوی وٚ، د خضر خان بل زوی شېرخان نومېدی چې لوی احمدشاه بابا رحمه الله د ده له پښته دی.

کامران خان د شاه جهان مغولي پاچا معاصر وٚ (۱۰۳۷ _ ۱۰۷۶ هـ) او د هغه پاچا سره یې دوستانه روابط درلودل، په (۱۰۴۷ هـ) دی د شاه جهان له خوا رسماً د کندهار په حکمداري پېژندل سوی وٚ او په (۱۰۵۰ هـ) د ربیع الاول په درېیمه کامران خان او د ده ورور مودود (مغدود) خان ډهلي ته تللی وٚ.[2]

د کامران خان د مرګ تاریخ نه دی راته معلوم، خو د ده ورور مودود خان د (۱۰۵۳ هـ) په شوال له هغه میر یحیی سره جنګ وکړ چې د شاه جهان له خوا د کابل حاکم وٚ او په دغه جنګ کې ومړ.[3] د کامران خان کلید کامراني کتاب ما نه دی لیدلی او نه یې په کمه کتبخانه کې درک لرم. خو د محمد هوتک دغه کتاب په لاس کې وٚ او لکه دمخه چې هم وویل سوه د

[1] حیات افغانی ص ۱۱۸، خورشید جهان ص ۱۸۱، تذکره الملوک.
[2] پادشاه نامه ج ۲ ص ۳۲ _ ۳۶ _ ۱۱۵.
[3] پادشاه نامه ج ۲ ص ۳۴۸.

ملتان د لودي کورنۍ تاريخ او هم د دوی پښتو اشعار يې له دغه کتابه رانقل کړي دي، چې د پښتو ژبې خورا پخواني ادبي آثار ګڼل کېږي. داسې ښکاري چې کليد کامراني هم د پښتنو سياسي او د پښتو ژبې ادبي تاريخ ؤ او کامران خان په تاريخ پوه او عالم پښتون حکمدار ؤ چې په خپل کتاب کې يې له اخبارالودي څخه هم مطالب نقل کړي وه.

## 《۱۲》

## الله يار د (تحفهٔ صالح) ليکوال

تحفهٔ صالح هم د محمد هوتک له ماخذو څخه ده او دغه کتاب ملا الله يار الکوزي د خپل استاد او مرشد شيخ محمد صالح الکوزي په نامه کښلی او په هغه کې يې د خپل او نورو پښتنو مشاهيرو احوال او اشعار راوړي وو. شيخ محمد صالح د خپل عصر عالم او زاهد سړی ؤ چې د کندهار په جلدک کې يې عمر په تدريس او ارشاد تېراوه او دوی د شاه بېګ خان د کندهار د صوبدار معاصرين دي.[1] د تاريخ له مطالعې دا راته ښکارېږي چې شاه بېګ خان کابلي په (۱۰۰۳ هـ) د جلال الدين اکبر له خوا د کندهار حکمران او تر (۱۰۱۴ هـ) پورې هم هورې و[2] نو د الله يار د ژوندانه اوقات هم د (۱۰۰۰ هـ) حدود تخمين کولای سو. محمد هوتک په خپل کتاب کې له تحفهٔ صالح څخه يو د شيخ محمد صالح احوال او اشعار اقتباس کوي او بل ځای د علي سرور لودي احوال او اشعار هم ځني را اخلي[3] له دغه اقتباسه ښکاري چې تحفهٔ صالح د پښتنو د رجالو او اديبانو پر احوال او اشعارو مشتمل ؤ او الله يار د پښتو ژبې يو مؤرخ او تذکره ليکونکی مؤلف دی.

(۱) پټه خزانه ص ۴۸.
(۲) اکبر نامه، تزک جهانګيري، اقبال نامه، منتخب اللباب.
(۳) پټه خزانه ص ۴۸ _ ۵۰.



## 《۱۳》

## محمد رسول هوتک د (بياض) ليکونکی

دا سړی د پټې خزانې په تصريح د کندهار د کلات هوتک ؤ چې د يو بياض د محمد هوتک څخه وو او په پټه خزانه کې يې هم درې ځايه ځيني مهم مطالب له دغه بياضه رانقل کړي دي او د محمد رسول ليکونه د پټې خزانې له مهمو ماخذو څخه دي د سلطان بهلول او خليل خان نيازي اشعار محمد هوتک له دغه بياضه را اخيستي او هم يې د رحمان بابا رحمه الله سوانح او مهم حالونه او هم يې د خوشحال خان رحمه الله اشعار او احوال له محمد رسول څخه اقتباس کړي دي.

د پټې خزانې له مقتبساتو ښکارېږي چې محمدرسول يو ډېر مدقق ليکوال ؤ او په خپل بياض کې يې ډېر مهم حوادث او احوال او اشعار ليکلي وو، ځکه چې د رحمان بابا رحمه الله سوانح په دغه ډول هيچا ته نه وه معلوم، خو د پټې خزانې په ذريعه د محمد رسول له بياضه ډېر غنيمت مواد لاس ته راغلل.

## 《۱۴》

## نعمت الله هروی د (مخزن افغاني) ليکوال

نعمت الله د خواجه حبيب الله زوی او د هرات له پښتنو څخه ؤ، چې د پټې خزانې په قول اصلاً نورزی دی. دا سړی د (۱۰۰۰ هـ) په حدودو کې ژوندی ؤ او د جهانګير د مشهور وزير خان جهان لودي له نوکرانو څخه ؤ په (۱۰۱۸ هـ) چې خان جهان لودي دکن ته مقرر سو، نعمت الله هم ورسره ؤ، او هيبت خان کاکړ هم د ده ملګری او د خان جهان له سرو څخه ؤ. نعمت الله د پښتنو احوال او تاريخ د خان جهان په امر او د هيبت خان کاکړ په ملګري د ذيحجې په شلمه (۱۰۲۰ هـ) شروع کړ او خپل کتاب يې (تاريخ جهاني يا

مخزن الافغاني) وباله.[1] مخزن افغاني په پارسو ليکل سوی او د پښتنو د تاريخ خورا مهم کتاب دی او د پښتنو احوال او علمي او روحاني رجال ډېر بيانوي، د کتاب قلمي نسخې سته او پروفيسور ډورن Dorn په (۱۸۳۶ ع) د دغه کتاب انګليسي ترجمه له لندنه خپره کړه.

لکه د شيخ بستان بړېځ په حال کې چې مو ولوستل نعمت الله د هغه مؤرخ معاصر دی او لکه چې پخپله يې کښلي دي کم وخت يې په درياب کې سفر کړی او په (۱۰۰۲ هـ) کال د ګجرات په احمد آباد کې و.

خلاصه: نعمت الله د پښتنو يو خورا لوی مؤرخ دی او د مخزن افغاني په ليکنه کې ډېر تاريخي کتب کتلي دي چې دلته به زه هر يو بېل بېل دروښيم. دا کتاب په (۱۹۶۰ م) کال دوه ټوکه په ډهاکه کې چاپ سو.

﴿ ۱۵ ﴾

## هيبت خان کاکړ د (مخزن افغاني) ليکمرستونکی

هيبت خان د سليم خان زوی له پښتنو فضلاوو څخه دی، چې د نعمت الله سره يو ځای د جهان خان لودي په دربار کې و او ده د مخزن افغاني په ليکلو کې هم مرسته هم تشويق کړی دی. نعمت الله د مخزن په مقدمه کې دی (محبت اطوار او فضيلت شعار) بولي او وايي چې مخزن مې د ده په سعی او کوښښ ليکلی دی.

د مخزن افغاني د يوې قلمي نسخې په پای کې د هيبت خان يوه پارسو قصيده د خان جهان لودي په مدح کې درج ده او داسي ښکاري چې دی عالم او اديب سړی و، په دغه نسخه کې ده د خپل خاندان احوال هم مفصل کښلي دي او دا زبادوي چې دی له پښتنو اميرزاده ګانو څخه و، او پلرونه يې په هند کې د لويو مرتبو خاوندان وو.

دی ليکي چې زما پنځم نيکه ملک فېروز د سلطان بهلول لودي په عصر کې له پښتنونخوا څخه راغی او د سلطان محمود شرقي په جګړو کې

[1] د قلمي مخزن افغاني مقدمه د پښتو ټولنې د کتب خانې.



يې مېړانه ښکاره کړه او په هند کې يې ډېر جاګير وموند. وروسته ملک ملهی د سوريانو په وخت د پنځوسو زرو منصب درلود او د کور د ولايت حکمران و، او ملک لقمان هم د سلطان سکندر لودي په اوقاتو کې لوړ مناصب درلودل. او دغه پښتانه په سامانه کې ميشته وو. د لقمان زوی ملک بستان او د بستان زوی ملک ښادي خان و، چې د هيبت خان نيکه او د سليم خان پلار دی.[1] دغه کورنۍ له ابتداء څخه تر آخره د پښتنو په پاچهۍ کې معتبره او مقتدره وه او دغه رجال ټول په جنګ او اداره کې مشهور دي.

﴿ ۱۶ ﴾

## شېخ عباس سرواني د (تاريخ شېرشاهي) ليکوال

تاريخ شېرشاهي د شېرشاه سوري او د ده د کورنۍ په احوال کې شېخ عباس خان سرواني ليکلی دی، سرواني د پښتنو يو قوم دی. دا پښتون مؤرخ د سوري پاچهانو د کورنۍ احوال له ابتداء څخه د اسلامشاه تر مرګه مفصلاً ليکي. تاريخ شېرشاهي د نعمت الله په ماخذو کې هم دی چې د مخزن افغاني په مقدمه کې يې يادوي.

د دې کتاب قلمي نسخه له ما څخه سته خو د ابراهيم بېټني تکملې هم لري، د تاريخ شېرشاهي متن دوې برخې دي: لومړۍ برخه په خپله شېرشاه او دوهمه برخه د ده د زوی اسلامشاه مفصل احوال دي. ژبه يې پارسو ده او موثق تاريخ دی چې عباس سرواني غالباً خپل مشاهدات کښلي او د دغو دوو تنو پښتنو پاچهانو حال او د سلطنت حوادث يې مفصل ليکلي دي.[2] شېخ عباس فاضل او عالم او سترګه ور مؤرخ ښکاري او د ده کتاب هم د سوري کورنۍ د تاريخ لپاره ډېر غنيمت دی، موجوده نسخه په کندهار کې د نورو کتابو سره يو ځای په (۱۱۱۳ هـ) ليکلې سوې ده. د مؤلف احوال

[1] د مخزن افغاني قلمي خاتمه ص ۳۷۷.

[2] د تاريخ شېرشاه قلمي نسخه.

يې اوس نه دی را معلوم او د کتاب د نورو نسخو درک هم نه لرم. شيخ امام الدين په تاريخ افغاني کي ليکي چي دغه کتاب هم زما ماخذ دی[1] د شېرشاهي تاريخ فارسي متن وروسته په هند کي چاپ سوی ؤ او يوه پښتو ترجمه يې په (۱۳۵۴ ش) کال په کابل کي چاپ سوه له دې ترجمې څخه ښکاري چي عباس د شيخ علي سرواني زوی ؤ، او د ده نيکه بايزيد د شېرشاه په وخت کي د ده حضور ته له روهه هند ته راغلی ؤ او دغه کتاب د اکبر پادشاه په امر عباس ليکلی دی.

## ﴿ ۱۷ ﴾

## مولانا محمود د (تاريخ ابراهيم شاهي) ليکوال

محمود د ابراهيم کالواني زوی يو مؤرخ دی چي د (۹۰۰ هـ) په شاوخوا کي ژوندی ؤ. ده د سلطان ابراهيم لودي په نامه (تاريخ ابراهيم شاهي) ليکلی او د هغه پښتون پاچا او د لودي کورنۍ احوال يې پکښې راوړي دي. دا کتاب هم د نعمت الله په ماخذو کي دی او د مخزن افغاني په ليکنه کي استفاده څني کوي.[2] او شيخ امام الدين هم په تاريخ افغاني کي دغه کتاب خپل ماخذ بولي، د خواجه نظام الدين احمد د طبقات اکبري په ماخذو کي هم شامل دی.

## ﴿ ۱۸ ﴾

## احمد خان د (مجمع التواريخ) ليکوال

دا تاريخ هم د مخزن له ماخذو څخه دی، او د نعمت الله په لاس کي ؤ او داسي يې ستايي: "و معدن اخبار احمدی که فصاحت شعاز و بلاغت دثار احمد خان بن بهيگخان کنبوله در سنهٔ يکهزار و بيست تصنيف نمود و

(۱) د تاريخ افغاني قلمي مقدمه.

(۲) د مخزن مقدمه په يوه قلمي نسخه کي.



مجمع التواريخ نام نهاده و الحق که تواريخ باين خوبی بنظر در نيامده است ...[1] نعمت الله وايي چي: دغه تاريخ د پښتنو احوال لري او ما اقتباس څني کړی دی اما اوس د دغه کتاب کمه قلمي نسخه نه ده معلومه، خو د نعمت الله له قوله يې پېژنو او داسي معلومېږي چي "معدن اخبار احمدی" هم نومېد.

## ﴿ ۱۹ ﴾

## ملا مست زمند د (سلوک الغزاة) ليکوال

ملا مست زمند د (۱۰۴۰ هـ) په حدودو کي په يوسفزو کي اوسېد، او روحاني او عالم سړی ؤ، دی د اخوند چالاک نومي روحاني پير ؤ او په خپل عصر کې ډېر روحاني نفوذ ومونډ اخوند چالاک د اباسين په لتو کي د مغولو پر خلاف ډېر ملي حرکات وکړل او ملامست هم په دغو جګړو کي لاس درلود.[2]

ملا مست د پښتو ژبي ليکوال دی او يو کتاب يې د (سلوک الغزاه) په نامه کښلی دی چي قلمي منحصر بفرد نسخه يې په پښتو ټولنه کي سته په دې کتاب کي ده د خپل عصر تاريخي احوال ليکلي او مشاهير او د پښتو مشران يې ښوولي دي د ډېرو جګړو بيان يې کړی او د خپل عصر هغه احوال يې کښلي دي چي په نورو تاريخو کي نه سو موندلای.

ملا مست عالم، اديب سړی دی په فقه، تفسير، عقايد، اخلاق کي ښه معلومات لري او د پښتو ژبي له پخو ليکوالو څخه ګڼل کيږي، که څه هم د ده کتاب يوازي تاريخ نه دی خو بيا هم ډېر تاريخي حوادث څني څرګندېږي او دی د مؤرخينو له ډلي څخه نه سو ايستلای. د مست زمند قبر تر اوسه د ننګرهار د شينوارو په غرو کي مشهور دی او خلک يې پېژني. د ملا مست په کتاب کي د سلطان محمود ګډون پښتنانه قايد په خصوص کي

(۱) احمد خان بن بيل خان کنبو.

(۲) د سلوک الغزاه قلمي نسخه. دغه نسخه اوس په ملي ارشيف کي خوندي ده.

هم ښه معلومات لاس ته راځي او د اخوند چالاک جهادونه بیانوي. له (سلوک الغزاه) څخه د اوسني عصر پر ذوق او تاریخي تدقیق برابر لاندنۍ پیښي اخیستلای سو :

۱. د هغه عصر د پښتنو ځیني مشران او خوانین رانښیي.
۲. د هغه عصر د پښتنو اوضاع په مشرقي خوا او پېښور کي ښکاره کوي.
۳. ابنیه او اماکن او د کلیو او مشهورو ځایو نومونه راښکاره کوي.
۴. هغه حوادث او وقایع چي د مست په عصر کي تېر سوي دي لږ لږ او څه څه بیانوي.
۵. د هغه عصر عمومي د پښتنو روح او اخلاق او عواطف ځني ښکاره کیږي.

په اصل کي کتاب تر دیني احساس لاندي لیکل سوی دی، اکثري برخي یې هم دیني او اخلاقي او وعظي دي خو ځای ځای د قوم د تخضیض لپاره تبلیغ کړی نو د غازیانو نومونه اخلي، وقایع هم لیکي، مشران او قایدین هم یادوي، د ځایو نومونه هم څرګندوي، د عصر عمومي اخلاقي رجحان هم ځني ښکاریږي. موجوده نسخه ډېره ناقصه او بې پایه او له منځه هم پرې پرې او ډېره پرېشانه ده، ډېر مطالب مبهم او ناڅرګنده پکښي پاتیږي او داسي ښکاري چي بله نسخه دې هم نه وي، د دې ټولو نواقصو سره هم ډېره غنیمت او قیمتي ده او بې له تاریخي بها ادبي پلو هم لري چي پر هغه بحث کول دلته نه ښایي.

«۲۰»

## شیخ رزق الله مشتاقي دهلوي د (واقعات مشتاقي) لیکوال

دا مؤرخ غالباً د ډهلي اوسېدونکی او د وفات کال یې (۹۸۹ هـ ۱۵۸۱م) دی نعمت الله هروي په مخزن کي دغه کتاب خپل ماخذ ګڼي او په مقدمه کي داسي وایي چي : مشتاقي د هند د پښتنو پاچهانو احوال په خپل



تاریخ کي کښیلي دي[1] مګر نعمت الله د دې کتاب نوم نه ښیي. تر نعمت الله هروي وروسته شیخ امام الدین متی زی هم د خپل کتاب تاریخ افغاني په مقدمه کي د مشتاقي تاریخ خپل ماخذ ګڼي، مګر د کتاب د نامه تصریح نه کوي[2]. خو دوني ښکاریږي چي دغه مؤرخ وروستنیو پښتنو تاریخ لیکونکو ته معلوم نه وو، خواجه نظام الدین احمد بخشي د محمد مقیم الهروي زوی چي خپل کتاب "طبقات اکبري" یې په (۱۰۰۱ هـ) کښلی دی په خپلو ماخذو کي "واقعات مشتاقي" هم یادوي[3] او له دغه تاریخه د مشتاقي د کتاب نوم پیدا کولای سو، د مؤرخینو له احوالو او اقوالو څخه داسي ښکاریږي چي مولانا مشتاقي ښه مورخ وو، ځکه ثقه مؤرخینو د ده کتاب په خپلو ماخذو کي راوړی او ګڼلی دی، مخصوصاً نظام الدین احمد هروي چي د اکبر پاچا د دربار سړی او هم غټ لیکوال او مؤرخ دی. د واقعات مشتاقي یوه خطي نسخه په برټش موزیم کي سته نمبر ۱۹۲۹.

«۲۱»

## ابراهیم بېټنی د (تاریخ شېرشاهي) بشپړوونکی

دمخه وویل سوه چي تاریخ شېرشاهي شیخ عباس سرواني کښلی دی. تر (۱۰۲۰ هـ) وروسته چي نعمت الله خپل مخزن وکیښ ابراهیم چي په ځته بېټنی ؤ راولاړ سو او مخزن افغاني او تاریخ نظامي (هغه طبقات اکبري چي نظام الدین احمد هروی کښلی و) او نور کتب یې وکتل او غالباً یې ځیني حوادث په خپله هم ولیدل نو یې د شیخ عباس سرواني تاریخ شېرشاهي تکمیل کړ. لکه دمخه چي مي وویل : زما څخه د تاریخ شېرشاهي یوه قلمي نسخه سته، چي په (۱۱۱۳ هـ) په کندهار کي کښل سوې ده، دا نسخه د ابراهیم بېټني تکملې هم لري او دی په خپله د کتاب په پای کي هسي کاږي:

---

(۱) د مخزن افغاني مقدمه.
(۲) د تاریخ افغاني مقدمه.
(۳) طبقات اکبري ج ۱۰ ـ ص ۴.

"مصنف اصل این تاریخ شیرشاهی عباس خان سروانی است. چون بعضی مقدمه چنانچه احوال بازیها درو وقایع کررنیان و مذاکرهٔ نوحانیان و بعضی معرکه ها داخل در این تاریخ نبوده بنا بران نواقص می نمود. دراینولا احقر العباد ابراهیم بیتهنی انرا از تاریخ نظامی که او نیز احوال شیرشاهی و اسلام شاه نوشته است و بعضی مقدمه از کتاب مخزن افغانی که آن نیز از تصنیف نعمت الله سامانی است انتخاب نموده داخل این تاریخ کرده باتمام رسانید ..."[1].

په دې ډول ابراهیم پر تاریخ شیرشاهي تکمله او اضافات لیکلي دي او هغه کتاب یې بشپړ کړی دی. داسې ښکاري چې د شېرشاه او اسلام شاه احوال په خپله عباس کښلي وو او ابراهیم پر هغه تاریخ دا لاندیني وقایع اضافه کړه:

۱. د عدلي او بازبهادر د پاچهۍ احوال او د کړانیانو او نوحانیو د تسلط وقایع.
۲. په مالوه کې د بازبهادر سلطنت چې دا پاچا هم د سور له قبیلې څخه دی او ابراهیم یې شرح حال مفصل کښلی دی د کړانیو احوال په دې فصل کې د تاج خان او عماد خان او نورو پښتنو امراوو احوال د جهانګیر تر عصره راغلي دي. د ابراهیم دغه تکملې د پښتنو د ګمنانو پاچهانو په احوال کې زموږ سره ډېر کومک کوي او ډېر هغه رجال راښیي چې په هغو کې وختو کې یې سلطنت کړی دی.

څکه چې ابراهیم د خپل تاریخ په پای کې جهانګیر ستایي او وایي چې په دغه عصر کې دی په هند کې ژوندی او اوسېدونکی وُ نو موږ دا ویلای سو چې ابراهیم د جهانګیر معاصر دی او د ده د ژوندانه دوره هم تر (۱۰۰۰ هـ) وروسته شروع کیږي. د ابراهیم له لیکه ښکاري چې دی ښه لیکوال او پلټونکی مؤرخ دی، د تاریخ کتب یې ډېر کتلي او استفاده یې څني کړې ده.

(۱) د تاریخ شېرشاهي د قلمي تکملې خاتمه.



﴿ ۲۲ ﴾

## غلام حسین سلیم د (ریاض السلاطین) لیکوال

په دې نامه سلیم د بنګال د پاچهانو یو تاریخ کښلی دی چې په هغه کې د ډېرو پښتنو پاچهانو ذکر او احوال هم راغلي دي. دغه مؤرخ هم لکه ابراهیم غونډي د پښتنو د څینو نوموړکو رجالو او پاچهانو نومونه او احوال راښکاره کوي چې دوی په بنګال کې حکمراني کړې او د هند په تاریخ کې د نامه خاوندان او مشهور دي. غلام حسین د هند د زید پور وُ او سلیم د ده تخلص دی، کتاب یې په پارسي د مستر جارج باډلي په نامه په (۱۲۰۰ هـ) کښلی دی. یوه مقدمه او څلور روضې لري د بنګال جغرافیا او د ښارو بیان مفصل د کتاب په سر کې لیکي، کتاب یې له هره پلوه مفید او د پښتنو پاچهانو او نوموړکو حکمدارانو د احوالو لپاره ډېر غنیمت دی، او څني داسې مباحث لري چې هغه په نورو تاریخو کې لږ موندل کیږي.

دا کتاب په (۱۸۹۰ ع) د بنګال د ایشیایي جرګې له خوا د (عبدالحق عابد) په تصحیح چاپ سوی هم دی، مګر له دې جهته دلته ذکر سو چې زموږ د هیواد خلکو ته دغه معلوم نه وُ او نه په موږ کې شهرت لري.

﴿ ۲۳ ﴾

## شیخ ملي د (دفتر) لیکوال

دا سړی د پښتنو یو معروف قاید او لیکوال او مؤرخ دی چې شهرت یې په شیخ ملي سره کړی وُ. د مؤرخینو په قول د ده د پلار پیرکی وه، اخوند درویزه او افضل خان ختک او نور مؤرخین او هم د خلکو عنعنه دا وایي چې د شیخ ملي نیکونه د کندهار په ارغسان کې اوسېدل او له هغه ځایه دوی د ننګرهار او پېښور لتو ته راغلي دي[1]. هغه پښتانه تر اوسه هم وایي: چې

(۱) تاریخ مرصع، تذکره الابرار، حیات.

مورږ له غوري مرغي څخه راغلي يو "مرغه" خو هم لوى ځاى ؤ چي اوس يي يوه برخه په ارغسان او بله په کدني اړه لري گويا "مرغه" د کوږک دغره شاوخوا تر روپه رسيده.

دغه لښته مؤرخين د ميرزا الغ بېگ په عصر کي گڼي (۸۱۲ _ ۸۵۳ ه) مگر داسي ښکاري چي له قديمه د پښتنو دغه تگ راتگ شروع ؤ، او ښايي چي دغه هم وروستنى لښته او يون وي. څکه محمد هوتک کښلي دي چي: د کند او زمند اولادو دمخه په لښنه پيل کړى ؤ [1] زما مقصد دلته دا نه دى چي د شيخ ملي شرح مفصل وليکم خو دلته د يو مؤرخ په حيث د ده پيژندنه مقصد ده چي شيخ ملي د پښتنو احوال او د خپل عصر وقايع او د دوى د راتگ حوادث او د مځکو وېش په يوه کتاب کي وکښل چي د دغه کتاب نوم (د شيخ ملي دفتر) ؤ، خوشحال خان دا کتاب داسي راښيي:

په سوات کي دي دوه څيزه که جلي دي که خفي
مخزن د درويزه دى يا دفتر د شيخ ملي

معلومه ده چي د خوشحال خان تر عصره هم دغه کتاب په سوات کي شهرت درلود او د مخزن سره يي په شهرت کي سيالي کوله خو پټ (خفي) ؤ.

د ناروې مشهور مستشرق مارگن ستيرن وايي چي: راورتي (مشهور انگليسي مستشرق) کښلي دي چي شيخ ملي خپل دفتر په (۱۴۱۷ ع _ ۸۲۰ ه) وکيښ او دا کتاب ما موندلى دى د پښتو ژبي يو خورا قديم ليک دى [2] راورتي په پښتو کي يو مدقق سړى دى، دغه نقل هم له ده څخه بالواسطه رارسيدلى دى. محمد عبدالسلام هم د شيخ ملي د دفتر په خصوص کي شرحه ليکلي او داسي ښکاري چي ده هم له راورتي څخه استفاده کړېده. [3]

په هر صورت د شيخ ملي د دفتر نسخه اوس ماته معلومه نه ده چي سته که نسته؟ خو دوني ويلاى سو چي تقريباً سل کاله دمخه دغه نسخه له

[1] پټه خزانه ص ۲۱ قلمي.
[2] د هند د زړو آثارو مجله ۱۹۳۹ ع.
[3] نسب افاغنه ص ۱۱۳.



راورتي څخه وه او په پښتو ژبه يو د پښتنو تاريخ ؤ، چي د يوسفزو د هجرت حال يي پکښي کښلى او د دوى د مځکو وېشونه يي هم پکښي کړي وه، اخوند درويزه وايي چي تر دغه وخته د شيخ ملي وېش معتبر دى او تر اوسه څوک څه نه سي پکښي کولاى [1] او يوسفزي تر اوسه هم ارثي جايداد ته د (شيخ دفتر) وايي.

خلاصه:

شيخ ملي د پښتنو يو ليکوال مشر او يو تاريخي سړى ؤ چي مدفن يي په اشنغر کي دى، او د مرگ تاريخ يي تر اوسه ماته نه دى معلوم خو د ژوندانه وخت يي د (۸۰۰ ه) شاوخوا دى. (وگورئ: زما تاريخ ادبيات پښتو دوهم ټوک دکابل چاپ.)

《 ۲۴ 》

## گجو خان رانيزى د پښتنو د تاريخ ليکوال

مارگن ستيرن مستشرق ليکي چي راورتي د پښتو ډکشنري په مقدمه کي کښلي دي چي له ده څخه د خان گجو رانيزي يو پښتو تاريخ سته چي په هغه کي د پښتنو تاريخي حوادث او وقايع ليکلي دي.

د دې تاريخي کتاب د ليکنې وخت راورتي (۱۴۹۴ م _ ۹۰۰ هـ) ښوولى دى [2] خو داسي ښکاري چي خان گجو خان د شيخ ملي تر عصر وروسته د پښتنو مشر ؤ تر اوسه د دې کتاب په خصوص کي نور څه معلومات له ما څخه نسته خو دوني ويلاى سو چي په سوات او اطرافو کي له يوسفزو څخه يو قوم تر اوسه رانيزي پراته دي. د حيات خان په قول تر اوسه له دغو يوسفزو څخه درې کورنۍ مشهوري دي چي يوه يې له دغو درو څخه ازي خېل دي چي ازي د علي زوى او علي بن رانى بن اکو بن يوسف دى. د ازي خيلو دغه مشهوره کورنۍ (کاجوکور) بولي چي پخوا د دوى

[1] تذکره الابرار.
[2] د هند د زړو آثارو مجله ص ۵۶۶ ج ۱۱.

نفوذ او اقتدار خورا ارت ؤ مگر اوس په پاسني سوات کي شپږ زره کوره په دوی اړه لري چي د (۱۲۸۰ هـ) په شاوخوا کي د دغي کورني مشر صحبت خان نومېدی، بل ځای حیات خان وایي چي خان کجو د شېرشاه معاصر ؤ[1] چي دغه خبره هم صحیح ښکارېږي نو دغه مشهور کاجو یا کجو خان د پښتنو یو خورا نومیالی مشر ؤ چي لکه شېخ ملي د علم څښتن هم ؤ او د ده یو تاریخي کتاب راورټي لیدلی او مونډلی ؤ چي اوس متاسفانه ورک دی او ښایي چي د برطانیا په موزیمو کي پیدا سي ځکه چي د راورټي ټول کړي کتابونه تر ده وروسته نه دي ضایع سوي او اکثر د لندن په موزه خانو کي خوندي دي.

## ﴿ ۲۵ ﴾

## خوشحال خان خټک د (بیاض) لیکوال

مرحوم خوشحال خان د پښتنو هغه نوموړی او علامه سردار او مشر شاعر دی چي ښایي داسي پښتون به نه وي چي دی نه پېژني. دا مرحوم د پښتو پلار او د پښتنو یگانه ملي ادیب او هم نوموړی لیکوال دی، مگر دا مشهور او معروف مشر تر اوسه د مؤرخ په ډول لږ پېژندل سوی دی.

خوشحال خان د پښتنو مؤرخ هم گڼل کیږي، ده خپل تاریخي مطالب او د پښتنو د تاریخ مهم وقایع په خپل یوه کتاب کي کښلي وو، افضل خان خټک په تاریخ مرصع کي ډېر مقاصد له دغه کتابه رانقل کوي او وایي چي خان علیین مکان په خپل (بیاض) کي هسي کښلي دي.[2]

راورټي مستشرق هم هسي لیکي چي خوشحال (تاریخ افغان) لیکلی دی چي اوس ډېر نایاب دی[3] نه پوهېږم چي راورټي هم هغه بیاض چي افضل خان یې راښیي یادوي که یې مقصد یو بل مستقل کتاب دی. په هر

(1) حیات افغاني ص ۱۷۴ _ ۱۹۰.

(2) تاریخ مرصع.

(3) د پښتو گرامر مقدمه.



صورت خوشحال خان د پښتنو مؤرخ دی تاریخ افغان یا بیاض د ده تاریخي کتاب ؤ.

## ﴿ ۲٦ ﴾

## حافظ رحمت خان د (خلاصة الانساب) لیکوال

نواب حافظ رحمت خان د شاه عالم خان زوی د محمود خان لمسی د شهاب الدین کوټا بابا کروسی دی چي اصلاً د کندهار د ښوراوک برېخان دي، شېخ شهاب الدین روحاني سړی ؤ او د پېښور د یوسفزو مرشد ؤ چي تر اوسه یې مزار د سرحدي صوبې په هزاره کي دی. تر ده وروسته یې کورنۍ مشهوره سوه او په بدایون او بریلي کې د پښتنو مشرتوب کاوه او د علیحضرت احمد شاه بابا رحمه الله په عصر کي د دې کورنۍ مشهور مشر حافظ رحمت خان ؤ، دی عالم فاضل لیکوال او شاعر سړی ؤ او په روهیل کهنډ کې حکمراني درلوده.حافظ رحمت خان د مشهور نواب علي محمد خان افغان ملگری ؤ او دواړه علمي او ادبي خلک وه چي علم یې ښه روزلی، مگر علي محمد په دغه وخت په (۱۱٦۲ هـ) وفات او هغه وخت چي اعلیحضرت احمدشاه بابا رحمه الله هند ته ولاړ نو حافظ رحمت خان هر وار له ده سره ښه ښه کومکونه وکړه او د احمدشاه بابا رحمه الله رشتین ملگری او مرستی ؤ، د پاني پت په جگړه کي هم دې نوموړي پښتون د خپل ملگري احمدشاه بابا رحمه الله سره ټینگه ملگري وکړه او په (۱۱۸۸ هـ) کال په یوه جنگ کي شهید او په بریلي کي ښخ سو.[1]

حافظ رحمت خان عالم، ادیب، لیکوال، متدیّن او شاعر او مؤرخ سړی ؤ ده یوه مفصله کتب خانه هم درلوده چي دکتور اسپرینگر مشهور مستشرق د هغو کتابو فهرست په (۱۸۵۴ ع) یو جلد نشر کړ او دی وایي چي دا کتابونه څلوېښت صندوقه او اکثر هم پښتو وه لویه برخه یې په

(1) د حیات حافظ رحمت خان په نامه یو مفصل کتاب سید الطاف علي بی ای لیکلی او په هند کي په ۱۹۳۳ ع چاپ سوی دی. دا کتاب ډېر مفصل او مستند دی دغه مطالب څني اقتباس سول.

(۱۸۵۷ ع) د لکهنو په فساد کې برباد سوه.[۱] حافظ رحمت خان د پښتو او پارسو د شعر دیوان هم درلود، ډار مستېتر وايي چې ددغه دیوان وجود ماته د هند پښتنو په ټینگه ووایه او جان استریچي لیکي چې ماته له هنده څني پارسو غزلي راورسېدې چې هغه د حافظ رحمت خان وې، علاوه پر دغه ډار مستېتر وايي چې ماته په رامپور کې یوه پښتانه د پښتو اشعارو یوه مجموعه راکړه چې د حافظ رحمت خان او نورو پښتنو سردارانو اشعار پکښې وه او دغه مجموعه اوس د برټش موزیم په شرقي آثارو کې ساتلې ده، یو د حافظ رحمت خان شعر په دغه مجموعه کې د حاکمو طبقو غندنه وه[۲] حافظ رحمت خان د پښتنو په تاریخ کې یو کتاب کښلی دی چې خلاصه الانساب نومیږي او د لندن په برټش موزیم او په هند کې نسخې سته.[۳] د دغه کتاب یوه نسخه په پښتو ټولنه کې هم سته او تر لمبر (۱۲۳۴) لاندې خوندي ده.

مؤلف د دې کتاب په لیکنه کې د اخوند درویزه تذکره الابرار او مخزن افغاني خانجهاني، او تاریخ شېرشاهي او نورو کتابو ته حواله کوي. د اعلیحضرت احمد شاه بابا ؒ درې سفره هند ته یادوي او په ښه نامه یې ستایي. کله کله د خوشحال خان په بیتو هم استناد کوي . کتاب له لومړي مخه تر (۷) حمد و نعت دی، وروسته د خپل نیکه شیخ کوټا بابا تگ هند ته بیانوي او د سړبنو برېخو انساب ښیي له (۳۴) مخه دوهم فصل او د بېټني د اولاد بیان شروع کیږي په (۳۶) مخ کې درېیم فصل او د غرغښت بیان دی نور کتاب تر (۵۶) مخه اخلاقي مضامین او د تسنن په ملتیا خبري اتري دي. دی وايي : چې دغه کتاب ما له دې جهته ولیکی، چې د هند پښتانه خپل اصلیت هېر نه کړي او د خپلو اجدادو په حال خبر وي.[۴] د کتاب ژبه پارسو ده په عربي جملو او خبرو هم ډېر مشحون دی. راورټي مستشرق د پښتو گرامر په مقدمه کې دغه کتاب نواب الله یار خان ته منسوبوي چې د حافظ الملک زوی دی مگر دا خبره د دې مستشرق غلطي ده او نه ښايي چې موږ په خطاوزو. د خلاصۀ الانساب تالیف د ختم تاریخ رجب ۱۱۸۴ ق کال دی چې د حافظ رحمت خان تر شهادت ۱۱۸۸ ق څلور کاله دمخه تالیف سوی ؤ چې په (۱۹۷۳ م) کال

[۱] د روهیلو جنگ د جان استریچي.
[۲] د جان استریچي د روهیلو جنگ.
[۳] حیات حافظ ص ۲۹۸.
[۴] له قلمي خلاصه الانساب لنډونه.



پښتو اکاډیمی د ښاغلي روښن خان یوسفزي په همت په (۱۶۳) مخه کې د پښتو ترجمې سره چاپ کی.

## ﴿ ۲۷ ﴾

## نواب مستجاب خان برېخ د (گلستان رحمت) لیکوال

د پښتنو برېخو پاچهانو علمي او نوموړي کورنۍ څخه د حافظ رحمت خان زوی دی چې د خپل پلار د شهادت پر وخت د (۱۳) کالو ؤ په دوشنبې (۲) د شوال (۱۲۴۸ هـ) په بریلي کې وفات او په هغه باغ کې ښخ دی چې دده په نامه یادیږي.

مستجاب خان د خپل پلار په ډول ډېر عالم او متقي مشر ؤ په عربي، پارسو او پښتو کې ماهر لیکوال او هم د خپل عصر ښه مورخ دی. د ده له تاریخي آثارو څخه (گلستان رحمت) دی چې د خپل پلار د ژوندانه احوال او د هند د پښتنو معاصر تاریخ دی. دا کتاب په پارسي ژبه په خورا صحت او روانه ژبه او ښه انشاء کښل سوی او مؤلف خپل مشاهدات او ډېر تارخي وقایع په خورا دقت او تحقیق پکښې لیکلي دي، او قلمي نسخه یې د هند په کتب خانو کې سته.

مستجاب خان اووه زامن درلوده، یو لمسی یې محمد عبدالرزاق خان هم د ډېرو تالیفو خاوند دی او د شعر دیوان هم لري. [۱]

## ﴿ ۲۸ ﴾

## سعادت یارخان برېخ د (گل رحمت) لیکوال

دی د حافظ محمدیار خان زوی او د حافظ رحمت خان لمسی او له هغې علمي کورنۍ څخه یو روڼ ستوری دی چې د (۱۲۴۹ هـ) په حدودو کې یې یو کتاب (گل رحمت) په پارسي وکیښ، د ده شعري تخلص (صاحب) دی

[۱] حیات حافظ رحمت خان ص ۳۴۹.

او په خپل کتاب کي يې د بړېڅو د کورنۍ احوال او هغه حوادث کښلي دي چي د ده په عصر کي پښتنو ته ورپېښ سول.

دی د خپل عمر په پای کي د بيت الله د زيارت لپاره ولاړ، پر لاري د هند په بروده کي وفات او هم هورې ښخ سو د دې علمي او ادبي کورنۍ مشهور رکن دی.[1]

## ﴾ ۲۹ ﴿

## نياز احمد (هوش) د (تاريخ روهيل کهند) ليکوال

د نياز محمد زوی او د حافظ يارمحمد خان لمسی او د حافظ رحمت خان کړوسی او له دغه علمي خاندانه څخه معروف مؤرخ او ليکوال دی چي (هوش) تخلص لري او د ډېرو مؤلفاتو خاوند دی، مثلاً کليات هوش، ترانهٔ هوش، حديقهٔ نعت او نور ... په اردو ډېر اشعار لري او د روهيل کهند تاريخ يې هم په اردو کښلی دی چي دغه کتاب هم د هند د پښتنو تاريخ گڼل کيږي د (۱۲۵۰ هـ) په حدودو کي ژوندی و عمر يې په سياحت تېراوه او د هند په علمي او ادبي جرگو کي شريک و.[2]

## ﴾ ۳۰ ﴿

## محمد سليمان خان "اسد" د (تاريخ افغانستان) ليکوال

محمد سليمان خان بن محمد موسی خان بن نواب محبت خان بن حافظ رحمت خان متخلص په "اسد" هم د دغي علمي کورنۍ يو ستوری دی چي شاعر هم اديب هم ليکوال هم و. د پښتنو تاريخ يې په اردو کښلی دی چي مشهور په (نقش سليماني) يا (تاريخ افغانستان) دی.[3]

---

(۱) حيات حافظ ص ۳۲۱.
(۲) حيات حافظ ص ۳۲۶.
(۳) حيات حافظ ص ۳۱۹.



## ﴾ ۳۱ ﴿

## نواب محبت خان د (رياض المحبة) ليکوال

نواب محبت خان د حافظ رحمت خان زوی و چي د خپل پلار د شهادت پر وخت (۲۴) کلن او ددې کورنۍ يو نوموړی پښتون سردار او امير دی. دی لکه خپل پلار د علم خاوند او په عربي او پارسو او اردو او پښتو کي شاعر او ليکوال و خو متاسفانه د ده اشعار د (۱۸۵۷ م) په اړ و دوړ کي تلف سوه په سنسکريت کي يې هم ډېر مهارت درلود. د ده څني اردو او پارسي او عربي اشعار تر اوسه محفوظ دي. ده پارسو مثنوی د (اسرار محبت) په نامه کښلي او يوه د پارسو ژبي قاعده او صرف او نحو يې ليکلې چي (امدنامه) نوميږي محبت خان په ۱۳ د صفر (۱۲۲۴ هـ) په لکهنو کي وفات او د وزير باغ سره کشور کنج ته نژدې ښخ سو. د ده له پارسو اشعارو څخه دغه دي چي استادي يې څني ښکاري[1]:

گر کشش من اثری داشتی — يار بسويم گذری داشتی
آنکه جهان را به نگه زنده کرد — کاش به ما هم نظری داشتی
زيستمی بی تو اگر مثل تو : — ما در گيتی پسری داشتی
دانهٔ مهر ار بدلش سرزدی — نخل اميدم ثمری داشتی
گر رخت از پرده برون آمد — شام "محبت" سحری داشتی

دا بيت هم د ده دی:

زسرگذشت "محبت" از هر که پرسيدم
به عارض اشک پياپی چکيد و هيچ نگفت

محبت خان ډېر فنان او سليم الطبع سړی و په موسيقي کي يې هم ښه معلومات درلودل داسي ښکلی و چي خلک به ورته ريان وو، غلام حسن

---

(۱) حيات حافظ ص ۳۱۳.

مؤرخ چي د ده معاصر دی داسي ليکلي دي : "ما په خپله د حافظ رحمت خان کورنۍ په لکهنو کي وليدله، محبت خان په صورت او سيرت د سرداری ور دی، خو افسوس چي سفله پروري زمانې دوی اوس په بلا کښې ايستلي دي."[1]

خلاصه : محبت خان د دې کورنۍ نوموړی سردار ؤ چي د مغولي وروستني پاچا جهاندارشاه له خوا يې د (نواب ظفر الدوله باز جنګ) لقب درلود. نواب محبت خان يو خورا مهم کتاب په پښتو کښلی دی چي نوم يې د (رياض المحبه) دی، دا کتاب راورټي ليدلی او داسي يې په موږ پېژني چي : "د سرجارج بارلو په خواهښت په (۶ ـ ۱۸۰۵ ع ـ ۱۲۲۰ هـ) کښلی سوی او (۷۰۰) پاني دی چي کوچنۍ صفحې لري. د پښتو مهم لغت دي او د افعالو ګردانونه لري."[2] د راورټي له دغه بيانه ښکاري چي رياض المحبت د پښتو يو لغوي او ګرامري کتاب دی مګر يو ځای په خپله راورټي [3] ځني مهم تاريخي مطالب له دغه کتابه رانقل کوي، او داسي معلوميږي چي په دغه کتاب کي محبت خان د پښتنو تاريخ هم کښلی ؤ، دغه برخه چي راورټي د دغه کتاب له پښتو مضمونه په انګريزي ترجمه کړې ده، د پښتنو احوال دي د سلطان محمود او غزنويانو په دوره کي او د دې خبري علل يې بيان کړي دي چي په هند کي ولي پښتانه (روهيله) بولي. د حيات حافظ رحمت خان ليکوال چي د دې زمانې پوه سړی دی او په خپل کتاب کي يې د دغه خاندان ټول احوال مفصل کښلي دي فقط دونې وايي : "چي محبت خان يو خورا مفصل قاموس هم کښلی ؤ"[4] مګر نوم يې ښايي چي نه ؤ ور معلوم.[5]

---

[1] سير المتاء خرين.

[2] د پښتو ګرامر مقدمه.

[3] د پښتو ګرامر مقدمه ص ۱۸ ـ ۱۹.

[4] حيات حافظ ص ۳۱۳.

[5] له دې کورنۍ څخه يو بل نوموړی د پښتو مؤلف نواب الله يار خان د حافظ رحمت خان زوی دی چي د عمر پر ۸۱ کال د ۱۲۴۸ هـ د شعبان پر ۹ وفات سوی او يو د پښتو لغت يې کښلی دی چي عجايب اللغات نوميږي، راورټي دا کتاب درلود او وايي چي په (۱۸۰۸ ع ـ ۱۲۲۲ هـ) په ۷۴۰ مخه کي کښل سوی او هر مخ يې ۱۷ ليکي دی. دا کتاب ما نه دی ليدلی چي تاريخي مباحث لري او که يوازي لغت دی. نو ځکه مي الله يار خان د مؤرخينو په ټولۍ کي نه وشمېره.



﴿ ۳۲ ﴾

## ... د تذکره الملوک ليکوال

د تذکره الملوک په خصوص کي فقط مستر راورټي څه معلومات کښلي دي چي بل ځای څه نسته، دا کتاب لکه چي فقط يو منحصر بفرد نسخه وه او هغه د راورټي لاس ته ورغلې وه د پښتو ګرامر په مقدمه کي لانديني معلومات ليکي : (تذکره الملوک د سدوزو تاريخ دی اتـه ټوکه او (۶۴۰) مخه لري، دا کتاب ډېر کمياب دی او زما په خيال به يې په افغانستان کي کمه بله نسخه هم نه وي د کتاب دوه ثلثه هغه وقايع دي چي د احمدشاه ابدالي تر مرګ وروسته واقع سوي دي، دا کتاب په پښتو کښل سوی دی او ليکونکی يې وايي چي دا کتاب فقط زه د سدوزو په تاريخ کي ليکم او له دغو کتابو مي استفاده کړې ده : تاريخ سلاطين سوريه، طبقات اکبري، ائين اکبري، مرآت الافاغنه، د صفوي شاهانو تاريخ، شاهجهان نامه، تاريخ عالمګيري، تاريخ فرخ سيری، تاريخ محمدشاهي، نادر نامه، تاريخ احمدشاهي، رسالهٔ اکبر خدکه. دا کتاب يوه مقدمه او دوه اصله او يوه خاتمه لري او د مضامينو فهرست يې دا دی :

مقدمه : د سدوزو د پلرو او نيکونو بيان.

لمړی اصل : د هغو قبيلو بيان چي په افغانستان کي اوسي.

دا اصل دوې فرعي لري : لومړی د هغو کورنيو بيان دی چي پر نورو يې حکومت کړی دی. دوهمه فرعه : د هغو قبيلو بيان دی چي په خپلو مېنو کي پرتې دي.

دوهم اصل : د هغو سدوزو بيان چي خپله مېنه يې پرېښې او په ملتان کي مېشته سوي دي. دا هم پنځه فرعي لري :

لومړی فرعه : خان مودود خېل.
دوهمه فرعه : د بهادر خېلو تاريخ.
دريمه فرعه : د کامران خېلو احوال.
څلورمه فرعه : د زعفران خېلو احوال.

پنځمه فرعه : د خواجه خضر خېلو بيان چي دوی سلطان خدکه خېل بلل کيږي.

خاتمه : د خواجه خضر خېلو او د احمدشاه دراني احوال او د ده فتوحات په هند او پنجاب کي [1] راورټي چي تذکره الملوک ليدلې وه له هغه کتابه څخه يې دغه لوړ معلومات کښلي او هم يې د دغه کتاب مقدمه په انګريزي ترجمه کړېده، داسي معلوميږي چي د دې کتاب د مؤلف نوم په خپله راورټي ته هم نه ؤ معلوم څکه چي د کتاب ذکر مفصل کوي اما د مؤلف نوم کورټ نه اخلي.

د تذکره الملوک ماخذونه چي مؤلف ذکر کړي دي او هم هغه انګرېزي ترجمه چي د کتاب له مقدمې څخه د راورټي په مشکوره سعی پاته ده موږ ته د مؤلف په خصوص کي داسي فکر راکوي :

د تذکره الملوک مؤلف پوه او عالم او مؤرخ او د پښتو ژبې يو نثر ليکونکی اديب ؤ، ښه مؤرخ ؤ څکه چي د خپل کتاب ماخذونه يې ثقه ښوولي دي، او د مقدمې مطالب هم غوره او مستند ښکاري (د هغه وخت له تاريخي معلوماتو سره سم) د تذکره الملوک د مؤلف د ژوندانه عصر هم د تيمورشاه زمانه يعنی (۱۲۰۰ هـ) تاکلای سو، څکه چي راورټي وايي چي د کتاب يوه برخه هغه وقايع دي چي احمدشاه بابا رحمه الله تر مړيني وروسته پېښي سوي دي.

د کتاب مقدمه چي راورټي په انګريزي ترجمه کړې ده عمده مطالب يې دغه دي :

د پښتنو د اصليت په باب کي هغه قصې او روايات چي کلاسيکي مؤرخينو ذکر کول (او اوس مدار د اعتبار نه دي) د پښتنو د نوموړو او مشاهيرو ذکر دغه بحثونه تدقيقي رنګ لري. او د استفادې وړ دي د پښتنو احوال د کسي په غره کي بيانوي او بيا د ملک ابدال احوال ليکي څو د ملک سدو عصر ته رارسيږي، دلته د سدوزو په خصوص کي خورا ښه او غنيمت مواد ليکي، د دې کورنۍ اقتدار او روابط د هند له لوديانو او

[1] د پښتو ګرامر مقدمه ۹ ـ ۱۰ ـ ۱۱ و غيره.



سوريانو سره بيانوي، چي دغه تاريخي څېړني يې ډيري ښې او د استفادې وړ دي.

خلاصه : د تذکره الملوک د مؤلف نوم متاسفانه نه دی رامعلوم او نه يې اوس کتاب موندل کيږي هغه نسخه چي د راورټي څخه وه نه ده راښکاره چي څه سوه خو تذکره الملوک په پښتو ژبه د پښتنو د تاريخ يو مهم او ګرانبها کتاب وُ. سلطان محمد قاسم کندهاري هم ليکي چي ده په کندهار کي د سردار محمد علم خان بن سردار رحمت الله خان څخه يو کتاب وموند چي د سدوزو په پاچهي کي کښل سوی او د دغه عصر حوادث مفصل پکښي راغلي دي.[1] د دې کتاب نوم سلطان محمد نه ليکي خو د خپل کتاب په مقدمه کي يې (مجموعهٔ ابدالي) بولي، څکه چي له دغه کتابه د سلطان محمد اقتباس د راورټي له ترجمې سره نژدېوالی لري نو ويلای سو چي دغه کتاب هم هغه تذکره الملوک و. (د هوتکو د وختو تذکره الملوک بل کتاب دی دغه دواړه مه سره ګډوئ.)

﴿ ۳۳ ﴾

## خان جهان خان لودي د (مرآت الافاغنه) ليکوال

راورټي دا کتاب د مرآه الافغانيه په نامه د تذکره الملوک په ماخذو کي ذکر کوي او د مؤلف نوم يې نه ښيي [2] له نورو کتابو څخه معلوميږي چي د کتاب صحيح نوم مرآه الافاغنه دی او مؤلف يې خان جهان لودی ؤ [3] د هند له مشهورو پښتنو څخه موږ دوه تنه په دې نامه پېژنو : لومړی خو هغه خان جهان لودی دی چي ذکر يې د مخزن افغاني په تفصيل کي وسو، بل خان جهان لودي هم د سلطان سکندر لودي (۸۹۴ ـ ۹۲۳ هـ) له مشهورو امراوو څخه دی چي په دغه وخت کي د لوی وزير حيثيت لري او د راپڅي

[1] تاريخ سلطاني ص ۵۲.

[2] د پښتو ګرامر مقدمه ص ۸.

[3] تاريخ سلطاني ص ۵۲ ـ ۵۷، خورشيد جهان ص ۸۷ ـ ۸۹.

جاگیردار دی [۱] د نعمت الله په قول خان جهان لودي په (۹۰۱ هـ) وفات سوی او تر ده وروسته یې زوی احمد خان د (اعظم همایون) په خطاب سرلوړی سوی وو. [۲]دا پښتون سردار لکه چي عالم او لیکوال او مؤرخ تېر سوی دی چي مرآه الافاغنه د ده تاریخي اثر دی او داسي ښکاري چي د پښتنو د پاچهانو چي په هند کي تېر سوي دي او مخصوصاً د سلطان سکندر لودي احوال یې مفصل کښلي وو، ځکه چي د کتاب نسخه نه ده لیدلی سوې او لوړ روایات هم پوره کفایت نه کوي، نو د مرآه الافاغنه انتساب هم دغه خان جهان لودي ته زما په عقیده سل په سل کي مثبت دی، شل کاله دمخه ما د دغه کتاب یوه خطي نسخه د ښکارپور په گرې یاسین کي ولیدله چي د خان جهان په نامه وه مگر کوم خان جهان؟ او د کوم وخت؟

﴿۳۴﴾

## منشي عبدالکریم د (تاریخ احمد) لیکوال

د دې کتاب نسخه له قاري عبدالله خان سره وه نه پوهېږم چي څه سوه؟ دا کتاب د پښتنو د سلطنت مفصل تاریخ دی چي منشي عبدالکریم د شجاع الملک سدوزي په وخت کي کښلی دی ژبه یې پارسو ده.

منشي عبدالکریم علوی مدقق او یوه مؤرخ دی د نادر افشار احوال او د احمدشاه بابا رحمه الله د سلطنت وقایع یې خورا مفصل کښلي دي او داسي ښکاري چي د دې تاریخ په لیکنه کي هم مقصد د دغه عصر حوادث وه او د احمدشاه بابا رحمه الله په نامه یې بللی دی، دا کتاب په اردو هم ترجمه سوی او د (واقعات درانی) په نامه په کانپور کي په (۱۲۹۲) چاپ سوی دی. فیض محمد یې هم په خپلو ماخذو کي ذکر کوي. د افغانستان په تاریخ کي ډېر قیمتي معلومات لري او له مهمو مراجعو څخه گڼل کیږي. د دغه عبدالکریم په نامه ما دوه چاپي کتابونه لیدلي دي:

[۱] خورشید ص ۸۹.
[۲] مخزن افغاني ص ۷۶.



۱. تاریخ احمد یعني محاربات سلاطین درانیه باسکهان وبهاؤ و جهنکو طبع لکهنو ۱۲۶۵ هـ.
۲. محاربهٔ قندهار: مصنفهٔ عبدالکریم طبع لکهنو (۱۸۴۸ م) کانپور (۱۲۶۷ ق) دی د ډېرو کتابو مترجم وُ، تر (۱۲۹۲ ق) دمخه مړ دی.

﴿۳۵﴾

## اکبر د یوې تاریخي رسالې لیکوال

دا رساله راورتي د تذکره الملوک په ماخذو کي راوړي او وایي چي د تذکرې خاوند له (رسالهٔ اکبر خدکه) استفاده کړې ده. داسي معلومیږي چي اکبر نومی پښتون یوه تاریخي رساله درلوده چي د تذکره الملوک د څښتن په لاس کي وه[۱] خدکه راورتي په لاتیني حروفو داسي ضبطوي **khadkah** او لکه چي دمخه د تذکره الملوک په بیان کي وویل سوه د سدو یو زوی خواجه خضر چي احمدشاه بابا رحمه الله هم د ده له نسله دی اولاد یې په (سلطان خدکه) مشهور دی د دې تسمیي وجه حیات خان او سلطان محمد او نور مؤرخین هسي کاږي چي د خضر خان زوی سلطان خداداد نومېدی او دغه سړی په خپل عصر کي ډېر مقتدر مشر وُ پښتانه لکه چي هر نوم د اعزازو لپاره تصغیر کوي دی یې (سلطان خدکی یا خدکه) باله نو په سدوزو کي هم د خواجه خضر اولاد چي سلطان خودکي ته منسوب دي ټوله خودکي بولي[۲]. په هر صورت اکبر د دغي طایفې څخه یو مؤرخ دی چي رساله یې د تذکره الملوک د خاوند په لاس کي وه.

[۱] د پښتو گرامر مقدمه.
[۲] حیات او سلطاني.

## ﴿ ۳٦ ﴾

## ... د (نادرنامې) ناظم

د دې مؤرخ نوم نه دی راته معلوم، خو دوني ويلای سم چي دی اصلاً د خراسان ؤ او د ده نيکه قاسمي شاعر دی، چي د مشهور مستشرق پروفيسور براون انگليس په قول يې د فردوسي د شهنامې په ډول اشعار ويلي او قلمي نسخه يې د انگلستان د کيمبرج په دارالفنون کي سته.[1]

د نادرنامې ناظم د قاسمي شاعر لمسی او د احمدشاه بابا معاصر دی چي يو کتاب يې د (نادرنامې) په نامه د خراساني نادر افشار په شرح حال کي په (۱۷) زره بيته د حسين خان فراهي په امر منظوم کړی دی چي دغه حسين خان د احمدشاه بابا ﵀ له خوا د خراسان حاکم وو. دا کتاب د اعليحضرت احمدشاه بابا ﵀ په نامه د (۱۱۷۲ هـ) د لومړی خور په مياشت پای ته رسېدلی دی.[2]

د نادرنامې ناظم د هوتکو د سلطنت او داحمدشاه بابا ﵀ د نيکونو احوال مفصل ليکي او بيا د احمدشاه بابا ﵀ د حيات ډېر وقايع ذکر کوي. د دې کتاب يوه قلمي نسخه کي زما څخه وه د بلې نسخې درک نه لرم، پارسو شعر يې خوږ او د قدر وړ دی.

## ﴿ ۳۷ ﴾

## ... د (سلطان اويس) د تاريخ ليکوال

نه د دغه کتاب وجود له بله ځايه رامعلوم دی او نه يې مؤلف پېژنم خو دوني راته ښکاره ده چي د مرحوم حاجي ميرويس خان هوتک ﵀ په احوال کي په لوړ نامه يو کتاب په عربي چا ليکلی دی، شېرمحمد مؤرخ تصريح

(۱) د براون د پارسو ادب تاريخ.
(۲) قلمي نادرنامه.



کوي چي په دغه کتاب کي د حاجي ميرويس خان ﵀ او د ده د ورور عبدالعزيز د عهد.وقايع مفصلاً راغلي دي[1] خو افسوس نه دی د دغه کتاب بيان ليکي او نه له بل چا څخه ما د دغه کتاب په باب کي څه اورېدلي او ليدلي دي نو په خپله د کتاب وجود هم محل د تامل دی ځکه چي په دغه عصر کي عربي کتاب ليکل له رواجه لوېدلي وه او هم معاصرينو لکه محمد هوتک د دغه هيڅ ذکر نه دی کړی.

## ﴿ ۳۸ ﴾

## ميا عمر څمکنی د (شجرهٔ نسب افغانان) ليکوال

محمد عمر د ابراهيم زوی چي اصلاً د باجوړ د ميا کلي وو، وروسته د پېښور په څمکني کلي کي ميشت او هم دلې په ۲۹ جمادي الثانيه ۱۱۹۰ ق وفات سو، دی د روحاني او علمي لوړ شخصيت خاوند او د اتک د شيخ يحيی څخه په نقشبندي طريقه کي ماذون وو احمدشاه ابدالي ﵀ د ده له متعقدانو څخه وو او په زرو نور ارادتمندان يې هم لرل په عربي او دري او پښتو ډېر آثار لري لکه مالي شرح، قصيده امالي په دري ۹۳۸ مخه او توضيح المعاني په پښتو د خلاصهٔ کيداني شرح او پښتو شمايل نامه چي په (۱۱۶۳ ق کال) منظومه کړې ده. د ده بل کتاب شجرهٔ نسب افغانان و غيره يو تاريخي اثر دی، چي ما ددغو کتابو خطي نسخې د پېښور د بالاماني د مرحوم فضل صمداني په کتابخانه کي ليدلي وې. ميرزا هادي عشرت د احمدشاه ﵀ د دربار منشي د ده د وفات تاريخ داسي ويلی دی:

تاريخ وفــــــات سر اقطاب زمان
رهنمون شد خرد از لطف بمن گفتاقم
اربيرون بحساب جـــملش تادانی
(عددی بيست نهم شهر جمادی دوم)

د وروستنۍ مصراع ابجدي ارزښت (۱۲۶۸) دی که عدد (ـ ۷۸) څني کم کو (۱۱۹۰ ق) پاتيږي.

(۱) خورشيد ص ۱۳۲.

## ﴿ ۳۹ ﴾

# محمد د (پټې خزانې) لیکوال

لکه چې دمخه تاسي ولوستل پټه خزانه د پښتنو د ادب او رجالو او هم د ښارو مهم تاریخ دی چې د شاه حسین هوتک په عصر کې د شوال په (۲۴) هجري کال (۱۱۴۲ هـ) یې لیکل پای ته رسېدلي دي.

محمد هوتک د پښتو مدقق مؤرخ او د پښتو ژبې نوموړی لیکوال او شاعر دی چې خپل کتاب یې د هغه معارف پالونکي پاچا په نامه کښلی دی.

خوشبختانه محمد هوتک د کتاب په پای کې د خپلې کورنۍ احوال هم لیکي، په دې ځای کې زما لپاره ډېر غنیمت دی او لنډوم یې:

"محمد د داوُد خان زوی د قادر خان لمسی په قوم هوتک چې اصلاً په مرغه کې اوسېدل او قادر خان له هغه ځایه سیوري ته راغلی وو له دغه ځایه یې یون وکړ او د کندهار کوکران ته راغی، په سن د (۷۶) کالو کې په (۱۰۵۸ هـ) وفات او هلته ښخ سو اما داوُد خان د مؤلف پلار په (۱۰۲۹ هـ) کال په کوکران کې وزېږېد او په صباوت کې یې علوم ولوستل شاعر او عالم سړی سو. داوُد خان په روب او د کسي په غره او پېښور کې سیاحتونه وکړل او د حاجي میرویس خان مرحوم رحمه الله سره د آزادۍ غوښتلو په جګړه کې ملګری وو، په (۱۱۲۶ هـ) داوُد خان د حاجي میرویس خان رحمه الله له خوا په فراه او سیستان او ګلستان کې د پښتنو د سپه سالار په ډول مقرر وو او هلته یې د متجاوز پردو لښکرو سره جګړې کولې. داوُد خان په (۱۱۳۶ هـ) وفات او په کوکران کې ښخ سو. د ده د ادب او علم د نمونې په ډول دغه دوې رباعی وګورئ چې د تجنیس په صنعت کې ځوني قیمت لري:

چې د چا په زړه کې اور د مینې بل سي
په اور بل یې لمبې ګډې حال یې بل سي
اور د مـــــینې کله مري د زړه له مینې
د اور بل مـــینه که تل د زړه په تل سي





که یې ویني ویني تل ځاځي له زړو څخه
څوک چې ویني تا له ځوانو یا زړو څخه
د زړو له زړه که ویني ویني ځــــاځي
په کړو د غم لوېدلي ستا له کـــړو څخه

اما په خپله محمد د پټې خزانې لیکوال په (۱۳) د رجب (۱۰۸۴ هـ) په کوکران کې وزېږېدی، او تر اتلسم کاله یې مروجه علوم لکه: فقه، تفسیر، اصول او د فصاحت علوم لکه: قافیه، عروض، بیان، معاني او نور ولوستل ځکه چې د پلار او نیکه ښه مناسبات یې د هوتکو د شاهي کورنۍ سره وو نو د شاه حسین په امر کندهار ته راغی، او هر کله به د دغه زلمي پاچا په دربار کې وُ او د حضور ادبي لیکوال وُ هغه ادبي او علمي مجلسونه چې د دغه پوهنوال پاچا په دربار کې به هر کله کېده یو رکن یې محمد وُ، دی په پټه خزانه کې د دغو ادبي مجلسو او تولنو حال ښه لیکي. محمد بې له پټې خزانې یو بل کتاب (خلاصه الفصاحه) هم په پښتو کښلی چې د فصاحت علوم یې پکښې راوړي دي، بل علمي پښتو اثر یې (خلاصه الطب) دی چې په (۱۱۳۹ هـ) کال یې د هغه زلمي پاچا حضور ته وړاندي کی او سل طلاوې یې جایزه ومونده. محمد د شعر دیوان هم لري دغه څو بیتونه د ده دي:

ساقي پاڅه د سرو ملو ډک یو جــــام را
ستـــــــــــا له غمه ناآرام یمه آرام را
نه نشاط سته نه مستي سته نه رندي سته
چې سـم رند هـغه اوبه عـلی الـدوام را
په اوبو مې سوړ زړګـي لړ څه را تود که[1]
"محـــــمد" ته داور ډک یو هسي جام را

پټه خزانه څو واره په کابل کې چاپ سوې ده:

۱. ۱۳۲۳ ش ـ پښتو ټولنه
۲. ۱۳۳۹ ش ـ تالیف او ترجمه
۳. ۱۳۵۴ ش ـ اطلاعات او کلتور
۴. ۱۳۵۷ ش ـ د ادب پوهنځی

---

[1] پټه خزانه ۱۰۷ ـ ۱۰۸ ـ ۱۰۹ ـ ۱۱۰ ـ ۱۱۱ د قلمي نسخې.

## ﴿ ۴۰ ﴾

## ریدی خان مهمند د (محمودنامې) ناظم

ریدی خان مهمند د غیاث خان زوی او د مسعود خان لمسی دی چې پلرونه یې د کندهار شرقي خوا د مهمندو په کلي کې اوسېدل، غیاث خان د مرحوم حاجي میرویس خان رحمه الله ملگری ؤ او په خپله ریدی خان د محمد هوتک معاصر دی په (۱۱۳۶ هـ) اصفهان ته ولاړ او هلته د اعلیحضرت شاه محمود بریالي سره وو له هغه ځایه چې راغی، د هغه اعلیحضرت د فتوحاتو په احوال کې (محمود نامه) نظم کړه چې څلور زره بیته وه.[1]

داسې ښکاري چې ریدي خان په دغه خپل کتاب کې د مرحوم حاجي میرویس خان رحمه الله د ملي نهضته رانیولې بیا د اصفهان تر فتح پورې توله وقایع په پښتو خواږه مثنوي نظم کړي دي.

محمد هوتک په پټه خزانه کې له دغه کتابه یو باب رانقل کوي چې د حاجي میرویس خان رحمه الله د ملي مجاهدت او د گرگین د وژلو قصې دي.

## ﴿ ۴۱ ﴾

## د صولت افغاني لیکوال محمد زردار خان ناغر

دا مؤلف د نولسمي سدۍ په منځ کې له هغو افغانانو څخه و چې په هند کې یې ځای او جایگیر درلود. ده په اردو ژبه د پښتنو پر تاریخ باندي صولت افغاني وکیښ چې په ۱۸۷۶ میلادي کې چاپ سو. دا کتاب خصوصاً د هندي افغانانو له مشاهیرو او غټو کورنیو او قبیلو چې په هند کې میشته سوي دي غوره معلومات راکوي. ناغر کاکړان چې په هند کې یې نسلونه پاته دي ښه رانیسي، او هغه سیاسي اقدامات چې د انگرېزي استعمار په وختو کې د پښتنو آزادو قبیلو او د افغانستان په خاورو کې د

[1] پټه خزانه قلمي ص ۷۱.



انگرېزانو په گټه سوي دي بیانوي او گرده معاهدې لیکي چې انگرېزانو په زوره په قبایلي مشرانو یا د افغانستان په حکمرانانو امضاء کړي وې.

## ﴿ ۴۲ ﴾

## افضل خان خټک د (تاریخ مرصع) لیکوال

دا مؤرخ د اشرف خان زوی او د خوشحال خان لمسی دی ځکه چې ما یې په پښتانه شعراء لومړي جلد (ص ۲۲۸) کې مفصل حال کښلی دی نو دلته یې تکرار ضرورت نه لري. تاریخ مرصع هم ده په پښتو کښلی دی، د پښتنو او د خوشحال خان د کورنۍ په باب ښې خبرې لري خو هیوز انگلیس لیکي چې دغه یو عمومي تاریخ دی د پښتنو او مخصوصاً خټکو احوال پکښې ذکې کیږي او اکثر مطالب یې له مخزن افغاني او درویزه څخه اقتباس سوي دي. هیوز دا هم وایي چې د تاریخ مرصع اصلي نسخه د افضل خان په لاس کې ده چې په جمال گړۍ کې اوسي، دوې نورې نسخې یې هم سته چې یوه په ما اړه لري.[1] راورټي په گلشن روه او هیوز په کلید افغاني کې له تاریخ مرصع څخه یو یو باب چاپ کړی دی. (دا هغه معلومات و چې ما ۳۷ کاله پخوا کښلي وو) اوس دا پر زیاتوم: دا کتاب په ۱۴۹۴ مخو کې د ښاغلي دوست محمد کامل مومند له نوټونو سره په ۱۹۷۴ م کال له پېښوره چاپ او خپور سو. چې اصلي متن یې ۶۲۴ مخه دی او د خوشحال خان له بیاضه هم دېرش مخه مفید مطالب رانقل سوي دي په تاریخ مرصع کې وقایع د ۱۱۳۶ ق کال تر پایه لیکل سوي او د مؤلف وفات یې ۱۱۸۳ ق دی. (د تفصیل لپاره وگورئ د چاپي تاریخ مرصع مقدمه)

[1] د هیوز د کلید افغاني مقدمه.

﴿ ۴۳ ﴾

## میرزا عطامحمد ښکارپوري د (نوای معارک) لیکوال

د پښتو ټولنې په کتابخانه کي په لمبر (۶۴۴) یو کتاب سته چي دا کتاب پر شنه پخواني کاغذ کښل سوی او تقطیع یې (۱۱/۵ × ۶) انچ دی. په هر مخ کي (۱۴) لیکي او ټوله (۴۶۰) مخه دی. خط یې د شکست او نستعلیق تر منځ او ښه نه دی. د مؤلف او کتاب نوم ښکاره نه معلومیږي پارسي انشا یې هم تکلف ته مایله ده.

کتاب په حمد او نعت شروع کوي وروسته وایي زه په زلمیتوب په ښکارپور کي وم او بیا مي د خراسان، هرات، کندهار، کابل، پېښور سفر وکړ، او د شاه شجاع د جګړو وقایع مي په سترګو ولیدل نو وروسته مي د ایستویک انګلیس په خواهښت دا کتاب وکیښ.[1]

مؤلف خپل تاریخ د نادر افشار له مرګه شروع کوي بیا د احمدشاه بابا او تیمور شاه او شاه زمان او شاه محمود ذکر مختصر کوي. وروسته د شاه شجاع او محمدزو د سلطنت ابتدایي وقایع مفصل شروع کوي د وزیر فتح خان او د ده د ورونو تسلط بیانوي د کابل، کندهار، پېښور او ټوله افغانستان د دغه عصر وقایع مفصل راوړي، د انګلیسانو د لومړي جنګ ذکر هم خورا مفصل کوي. داسي ښکاري چي مؤلف خپله نسخه په (۲۵) د جمادی الثاني (۱۲۷۱ هـ) تمامه کړې ده او دغه موجوده نسخه هم په (۶) د روژې (۱۲۷۱ هـ) لیکلې سوې ده. د کتاب د پای لیک داسي دی: "بقلم حقیر پر تقصیر میرزا محمد حسن خلف مولانا میرزا عطامحمد". له دې لیکه د مؤلف د نامه په خصوص کي یو استنباط کولای سو چي د مؤلف نوم میرزا عطامحمد و، ځکه چي د کتاب په پای کي خو ځایه د (عطا) په نامه تلمیح کوي مثلاً: "با تمام این نسخه موسومه تازه نوائی معارک پرداخته شد ... امید از اهنگ نوازان ساز ... اگر فقط به نقد تحسین و آفرین متاع

(1) له قلمي نسخې څخه ص ۱ تر ۱۱.



هنرم را بخرند عین عطائی بر عطاست و الا بزبان عیب جوئی و نخوت نام عطا بخطا نبرده معاف دارند ... هر گاه از راه لطف و عطائی به مطالعه این نسخه پردازند ...".

له دغه بیانه سړی داسي تخمین کولای سي چي میرزا محمد حسن د دغي نسخې لیکونکی د مؤلف میرزا عطامحمد زوی و، ځکه د تالیف د ختم او د دغي نسخې د لیکلو تر منځ فقط دوې میاشتي فاصله ده. متاسفانه د دغي نسخې یو څو پاڼي پرې سوي او ناقصي دي چي له دغو څخه یو څو پاڼي په بل خط بیا تکمیل سوي دي او داسي ښکاري چي د کتاب بله نسخه هم موجوده وه. دغه کتاب وروسته ما په کراچي کي له څو خطي نسخو څخه ترتیب او چاپ کی. (کراچي سنده ادبي بورډ ۱۹۵۹ م) دغه میرزا عطامحمد د عبدالرحیم لمسی او د ښکارپور له ممتازي علمي کورنۍ څخه یو منشي و چي په کلو کلو یې په کندهار او هرات کي د افغاني دربار منشي توب لاره او تر ۱۲۷۲ ق پوري لا ژوندی و. په (۱۲۲۵ ق) د خپل اکا سره چي په کابل کي د سنده سفیر و کابل ته راغلی و. د دې کتاب د کراچي چاپ مصور او ۱۱۱۵ مخه دی.

﴿ ۴۴ ﴾

## حاجي محمد عارف قندهاری د (مطلع او مقطع) لیکوال

حاجي محمد عارف د قندهار دی او د یوه خورا مفصل تاریخ لیکونکی دی چي لومړی ټوک یې (مطلع) نومیږي او بل یې (مقطع). محمد عارف په کندهار کي د بیرم خان میرسامان و.[1] او د هغه سړي سره یې تر مرګه ملګري درلوده. هند ته ورسره ولاړ چي بیرم خان ووژل سو نو عارف له کجراته حجاز ته ولاړ له حج وروسته تر (۹۸۵ هـ) د مظفر خان سره و، په (۹۸۶ هـ) د اکبر پاچا دربار ته ولاړ او د پنجاب په دیواني مقرر سو. مګر ژر یې استعفا وکړه او د مظفرخان سره په ټانده کي اوسېدی. په (۹۸۸

(1) مآثر رحیمي ج ۲ ص ۱ ـ ۸.

ه) په دغه ځای کې د مظفرخان سره یو ځای ووژل سو. محمدقاسم فرشته د ده له کتابه دېر مطالب رانقل کوي[1] او داسي ښکاري چي نسخه يې د ده کتب خانه کي ده د دې نسخي لومړنۍ او وروستنۍ پاڼي نسته خو خوشبختانه دغه ناقصي پاڼي د انګلستان د کیمبرج په کتبخانه کي خوندي دي. په (مطلع) کي د همایون د عصر حوادث ضبط وو او په (مقطع) کي د سلطان محمود له عصره بیا تر (۹۸۶ هـ) پوري د هند د ټولو پاچهانو او د پښتنو د سلطنت احوال کښلي دي. نو حاجي عارف کندهاري پوه پښتون مؤرخ دی چي په هند کي يې خپل کتب لیکلي دي. دی شاعر هم و امین زاري يې دغه دوه بیتونه ضبط کړي دي:

صد ارزو است در دل تنگم گره زدوست
دل نیست در برم گـــــره آرزوی اوست
ای بسا توبه که چون توبه دیرینه من[2]
خوبرویان بشکنند بیـــــک چشم زدن

د حاجي عارف د (مطلع) درک اوس نسته او دغه کتاب ورک دی.

﴿ ۴۵ ﴾

## سلطان محمد خالص د (تاریخ سلطاني) لیکوال

سلطان محمد په نوموړکو تاریخ لیکونکو کي نه راځي، ځکه چي د ده کتاب چاپ سوی او مشهور دی مګر له دې جهته چي څوک د ده په احوال نه دي خبر نو يې شهرت هم کم دی، زه لاندیني معلومات د دې مؤرخ په خصوص کي لرم: "سلطان محمد خان د موسی خان زوی په قوم نصرت زی بارکزی د کندهار له پوهانو څخه و، چي په شعر کي يې خالص تخلص کاوه، ده خپل تحصیلات په کندهار کي وکړل او په پارسو کي ښه لیکوال او منشي سو. د امیر شېرعلیخان په دوره کي د کندهار له مشهورو خوانینو څخه و او

(1) فرشته مقالهٔ ۴ ـ ۷ ـ ۹.
(2) هفت اقلیم.



دېر عمر يې په کلات کي حکمراني کړله، هغه وخت چي غازي محمد ایوب خان په کندهار کي پاچا سو، دی يې ملګری و او د میوند په جهاد کي يې هم برخه درلوده، د (۱۲۹۷ هـ) د روژې تر میاشتي وروسته چي غازي محمد ایوبخان له کندهاره ایران ته ولاړ، نو د ده ملګري هم سره بېل سول او سلطان محمد خان مرحوم کراچي ته ولاړ او هوري اوسېد، ده په کندهار کي لا یو مفصل تاریخ کښلی و چي تاریخ سلطاني نومېد، لومړی جلد يې په (۱۲۹۸ هـ) په بمبیي کي په خپله طبع کړ دا جلد تر (۱۲۷۹ هـ) پوري له ابتداء څخه د پښتنو احوال لري او هم وقایع په خورا ښه صورت لیکي، د سلطان محمد د تاریخ دوهم ټوک چي د ده د عصر وقایع او هم مشاهدات وو ده لیکلي او هم چاپ سوي دي چي د هغه نسخې متاسفانه د امیر عبدالرحمن خان په وخت کي ضایع کړلي سوې او اوس نه میندلي کېږي، مګر له پخوانو خلکو څخه روایت دی چي له هغه کتابه یو څو نسخې پاته سوي او ضایع سوي نه دي د تاریخ سلطاني د دوهم جلد که کمه نسخه اوس ومیندله سي د وطن د تاریخ لپاره به دېر غنیمت وي.

سلطان محمد په زیارت د بیت الله شریف هم مشرف سوی و او پسله (۱۳۰۰ ه ق) غالباً له کراچي څخه تللی او د هغه عصر د تورکیې په عربي مملکتو لکه: شام، عراق او نورو ... ګرزېدلی او هم هوري وفات سوی دی. خالص یو د پارسو شعر دېوان هم درلودی چي د ده تر مرګ وروسته محمدابراهیم او د ده زوی هغه اشعار سره ټول کړي وو، له دغه کتابه فقط لومړنۍ دري پاڼي زما څخه وې، ابراهیم لیکي: زما پلار چي بیت الله ته ولاړ بیا يې احوال معلوم نه سو څو کاله وروسته د سلطان محمد خان ورور حاجي جان محمد کندهار ته راغی او وې ویل چي حاجي سلطان محمد په تورکو کي وفات سو، ابرهیم وایي: چي د پلار دېر اشعار او منثور لیکونه زما څخه وو، هغه مي سره ټول کړل او د (دېوان خالص) په نامه مي وبلل.[1] ما (حبیبي) د خپلي کورنۍ له لویانو څخه (خدای ﷺ دې وبخښي) اورېدلي وو چي سلطان محمد خان عالم او خورا پوه لیکوال و، په کندهار کي به هر

(1) د تاریخ سلطاني مقدمه او د دېوان خالص لومړنۍ قلمي پاڼي.

کله له پوهانو او علماوو سره محشور و، او د مشهور حبو اخوندزاده لـه زوی عبدالرحیم اخندزاده څخه یې استفاده او لوست کړی و، او د هغه ملګری هم و، چې لـه کندهاره فـرار سـو نـو هـم د مولـوی عبدالرحیم اخنـدزاده د زوی مرحوم عبدالرؤف خان سره یو ځای کاکړستان ته ولاړ.

دا دوه بیته د ده له یوه مناجاته را اخیستل کیږي[1] :

اگر فضیلت نگردد دستگیرم
زشر نفس خود در دم بمـیرم
زشر نفس و شیطان ده امـانم
مگر دان جز بذکر خود زبانم

﴿ ۴۶ ﴾

## قاسم علي خان د (محاربهٔ کابل) ناظم

دا سړی د هنـد دی، پـه (۱۲۶۰ هـ) یـې د (محاربـهٔ کابـل) پـه نامـه د فردوسي د شهنامې په وزن یو کتاب تخمیناً په نه زره بیته کي نظم کړی دی دا کتاب د فیض محمد له ماخذو څخه دی. چې د سراج التواریخ په کښلو کې استفاده ځني کړې ده. قاسم علي د شاه شجاع لـه عصره خپل تـاریخ شروع کوي. د افغانستـان د اړو دوړ او انقلاب حوادث او د پردو د حملو او جګړو وقـایع پـه کنـدهار او کابـل کـې ښرګندوي. کـه څـه هـم دا کتـاب د متجاوزینو په طرفداري کښل سوی دی خو بیا هم د وطن د تاریخ د دغي دوري لپاره بد نـه دی، او استفاده ځني کېدای سي. د کتاب ادبي جنبه او شعر خوږ او روان دی په (۱۲۷۲ ه) د اګرې په لیماني مطبعه کي چاپ سوی دی. مګر نسخې یې اوس لکه قلمي کتابونه ډېري نـه میندلي کیږي او دغه کتاب هم لږ خلک پېژني، مؤلف د کتاب په سر کي لیکي : چې زه د سند په

(1) د دیوان خالص قلمي پاڼي.



سفر ولاړم چي راغلم خلکو د سفر معلومات راځخه غوښتل ما هم نظم کړل د نمونې په ډول د کتاب د پای څو بیتونه ولولئ :

ستـایش به یزدان که این نامه ام
سـراپا برار است از خـامه ام
مـگر جان فـردوسی پاک زاد
ز فـردوس در قـالبم رونـهاد
که زان همت این نامه را گفته ام
سخن همچو سلک گهر سفته ام
بدریای معنی شدم غوطه خور[1]
بسـه سال انـدوختم این گـهر

﴿ ۴۷ ﴾

## رساله نسب نامه فرقه غلجي

دا رساله میا عبدالحکیم کـاکړ لـیکلې ده، چې دی د ۱۱۴۵ ق پـه شاوخوا کي د کندهار د خلکو لوی لارښوونکی او د میا فقیرالله جلال آبادي مرید او معاصر و (۱۰۷۰ ـ ۱۱۵۳ ق) دا عـالم او متصوف مشـهور سړی ډېر نـور تالیفونـه هم لري او مرقـد یې د کـاکړو د لـورلائي پـه تل چوتیالي کي دی.

میـا عبـدالحکیم پسله ۱۱۵۰ ق یـوه رسـاله د پښتنو د قبیلو او لنډ تاریخ په باب کي په دري ژبه وکښله، چې اوس یې یوه خطي نسخه ماته پرته ده. دا د پښتنو یوه لنډه تاریخچه ده چي لومړي فصلونه یې د غلجو نسب نامه او د دوی د پاچهانو او مشرانو احوال بیانوي لکـه : د توخـو مشـران، سـلطان ملخي او حـاجي ایـدل او د هوتکو مشـران حـاجي میرویس او شـاه محمود او شاه اشرف او شاه حسین د نادر افشار تر حملې پوري.

(1) له محاربهٔ کابل څخه.

نور فصلونه د لودي اولاد او په هندوستان کي د پښتنو شاهانو او د سوريانو او د شېرشاه احوال په لنډ ډول بيانوي.

د دغي رسالي په پای کي داسي کښلي دي: مؤلف رساله ملا عبدالحکيم کاکړی است بموجب ارشاد عمدهٔ زمان ... محب العلماء جناب عبدالعزيز خان غلجي توخی محمدزی برهان خيل که از کندهار بقصد سپه گری بهندوستان امده بود و به رتبه اميری رسيده و چند گاه نائب دار السلطنته لار (؟) بود ... و هر افغان که از ولايت بهندوستان امدی از نوازش او محروم نرفتي ..."

د ميا عبدالحکيم دغه رساله که څه هم کوچنوټي ده خو حاوي او مفيده ښکاري.

## ﴿ ۴۸ ﴾

## روزنامهٔ غزوات هندوستان

دا کتاب د امير تېمور کورګان د فتوحاتو بيان دی، تر هغه وخته چي دی په ۸۰۱ ق کال هندوستان نيسي. مؤلف يې غياث الدين علی بن جمال الاسلام دی چي په فارسي ژبه يې دا لنډ کتابګوټی کښلی و.

د افغانستان او پښتنو په تاريخ کي دا کتاب له دي جهته ګټه ور دی چي د امير تېمور سفر او جنګونه له هراته تر کابله او اباسينه رانيسي، او په اوسني پختيا ولايت کي د پښتنو مشرانو نومونه او قبيلي او جغرافي ځايونه هم ذکر کوي.

د دې کتاب يوه خطي نسخه چي په ۱۰۱۵ ق کال کښلي سوې وه په پتروګراد کي وه او يوه روسي محقق ليوز يين تصحيح کړه چي بيا نو ۲۱۲ مخه متن او ۲۰ مخه فهرستونه له يوې روسي مقدمې سره واسيلي بارتولد د پتروګراد د دار العلوم په مطبعه کي چاپ کړه ۱۹۱۵ م.



## ﴿ ۴۹ ﴾

## ائمهٔ الافاغنه

امير افضل جدون د لاهور په هفته وارسيف ۷ سپتمبر ۱۹۹۵ م کال ليکي: ملا خانمير يوه چارمقاله لري، چي په ۱۱۵۵ ق تاليف سوې ده، او دی له بله عربي کتابه ډېر مطالب رانقل کوي. چي هغه کتاب ائمه الافاغنه دی او مؤلف يې ابو الخطيب شيرازي نوميږي چي په ۵۳۵ ق کال مړ دی.

دا کتاب هم په فارسي او هم په پښتو ترجمه سوی دی چي سيد عبدالجبارشاه د سوات معزول امير يې دواړي نسخي درلودې. فارسي مترجم يې محمدجواهر خان سواتی و. چي دغه نسخه يې امير افضلجدون ليدلي وه، او مستر التهرا امريکايي په پښتو ګايد کي ليکي: چي ما هم د ائمه الافاغنه فارسي ترجمه په باجوړ کي د يوه خانه سره ليدلي ده. د ملا محمد خانمير د چارمقالې په يوه حاشيه کي داسي کښلي وه چي: "بدانيد که اکثراً اخبار حواشي از کتاب ائمه الافاغنه است و ائمه الافاغنه از ... ابوالخطيب شيرازی يوشع بن ابراهيم بن معصوم بن عبدالجبار بن سليمان شيرازی بن ليث کاکړی است ... ابوالخطيب برای تحصيل علم از شيراز به بغداد رسيده در تلامذهٔ ابوبکر داخل شد." (سيف طبع لاهور ۱۹۵۵ م)

داسي ښکاري چي په دغه سنه ۵۳۵ ق کي به تحريف او سهوه راغلي وي. ځکه چي ابوبکر احمد بن علي مشهور په خطيب بغدادي په ۳۹۲ زوکړی او په ۴۶۳ ق کي مړ دی، نو که موږ د دغه ابوالخطيب شيرازی عمر ۸۰ کاله هم وګڼو، د بغدادي خطيب د مرګ پر وخت به دی بيخي کوچنی هلک وي. چي د بغدادي خطيب د شاګردۍ سن ته به نه وي رسېدلی.

ځکه چي د ائمه الافاغنه نسخې ثقه خلکو ليدلي دي، نو د منلو وړ خبره ده. (وګورئ په وروسته بيان کي د ملا خانمير چارمقاله)

## ﴿ ۵۰ ﴾

## د ملا محمد خانمیر چارمقاله

لکه چي تاسي په ۴۹ عدد کي د ائمه الافاغنه تر نامه لاندي ولوستل دغه کتاب په فارسي ژبه لیکل سوی او ځیني برخي يې له ائمه الافاغنه څخه را اخیستي دي، لکه امیر افضل جدون چي د راولپنډي د تعمیر په ورځپانه ۴ فبروري ۱۹۵۶ م کي کښلي دي : چار مقاله په ۱۱۵۵ ق ملا خانمیر تالیف کړې ده چي دوې خطي نسخې يې دغه سړي د ضلح هزاره په نوان شهر کي لرلې.

د چارمقالې په حاشیه کي داسي کښلي دي، چي دغه حواشي اکثر له ائمه الافاغنه څخه رانقل سوي دي، او مطالب يې هغه داستانونه وو چي پخوا د پښتنو د کسي غره او کیس نیکه لپاره، سره راجوړول سوي وو او بیا د نعمت الله په مخزن افغاني او نورو تاریخي کتابو که هم رانقل سوي چي له تاریخي واقعیتَه سره څنگ نه لگوي.

په دغسي کتابونو کي کله کله ډیري گټوري خبري پیدا کیږي چي د اوسنیو تاریخوالو په کار ورځي خو ځیني داسي خبري هم پکښې وي چي هغه نه عقل مني او نه له تاریخي پرله پېیلو واقیعتو سره سمیږي. ځکه چي ما په خپله دا چار مقاله نه ده لیدلې نو تر دې زیات څه نه سوای پر ویلای.

## ﴿ ۵۱ ﴾

## اسرار الافاغنه

دا کتاب په پښتو ژبه صابر د خضر زوی کښلی و، چي دغه خضر د شاه قاسم سلیمان مرید و، مستر ډیر ستارټ د ایشیا تیک ریسرچز د دوهم ټوک په ۷۰ مخ کي لیکي چي دغه کتاب بیا له پښتو څخه خیر الدین نومي لیکوال په فارسي ژبه خلاصه کی. (تاریخ افاغنه ۸۹/۲)

په لوړ بیان کي خضر د شاه قاسم مرید و، لکه چي د دغه رسالې په دریم عنوان کي ویل سوي دي دغه شیخ قاسم سلیماني د شیخ قدم زوی او د شیخ



متی له علمي او روحاني کورنۍ څخه و. چي په ۹۵۶ ق زېږېدلی او په ۱۰۱۶ ق د هند په چنارگړه کي مړ سوی دی، نو که د اسرار الافاغنه مؤلف خضر د ده معاصر او مرید وي نو د کتاب د تالیف وخت د ۱۰۰۰ ق کال شاوخوا اټکل کولای سو. خو د دغه کتاب پښتو یا فارسي نسخه ماته نه ده معلومه.

## ﴿ ۵۲ ﴾

## خواجو ملېزی د (تواریخ افاغنه) لیکوال

دا کتاب د ۱۰۳۱ ق او ۱۰۳۳ ق تر منځ په پښتو ژبه د خواجو ملېزي په قلم تالیف سوی و، چي دی د یوسفزو د لوی مشر خان کجو له مصاحبینو څخه یوسفزی لیکوال و، او په خپل تواریخ افاغنه کي يې له ۸۸۰ تر ۹۹۴ ق پوري د پښتنو قبیلو هجرتونه او جنگي او اجتماعي پیښي د خان کجو تر مرگه لیکلي وې.

د دې کتاب یوه نسخه د ۱۱۸۰ ق په شاوخوا کي د هندوستان د شهاجهان پور د پښتانه نواب بهادرخان داود زي په کتابخانه کي وه. او هغه يې د روهیل کهنډ مشهور حافظ خان بړېځ ته واستوله، کله چي دغه پښتون حکمران دغه نسخه ولیدله نو يې د خپل دربار یوه پښتون لیکوال پیر معظم شاه ته وویل چي دا نسخه واخله په ساده ژبه يې د عامو خلکو د کتلو لپاره ترتیب او تهذیب کړه. نو معظم شاه هم دغه کار په گډه وډه پښتو او فارسي تر سره کی چي د تواریخ رحمت خاني تر غنوان لاندي ښودل سوی دی (نمبر ۵۳)

متاسفانه د خواجو اصل کتاب تواریخ افاغنه اوس نسته خو د دوهم مؤلف پیر معظم شاه سره را اوډلی او سم کړی کتاب د تواریخ رحمت خاني په نامه چاپ سوی دی.

خواجو خورا پوخ او سترگه ور سپېڅلی مؤرخ دی چي معظم شاه يې (مؤرخ محقق قاصی این قصص) بولي او په کتاب کي يې داسي مشران او واقعې ښودلي سوي دي چي بل ځای يې نه مومو، او داسي ښکاري چي

خواجو د پښتو ژبې شاعر هم و، چې د ده د يوه نظم نمونه هم په تواريخ رحمت خاني کې راغلې ده. (ص ۴) خواجو په خپل تواريخ کې د خان کجو د مرګ يادونه هم کوي، نو ځکه ويلای سو چې د کتاب په تولونه او ليکنه به د کجوخان تر مرګ وروسته پيل سوی وي. خدای دې حافظ رحمت خان او معظم وبخښي، چې د خواجو ورک سوی تواريخ يې موږ ته په تواريخ رحمت خاني کې را خوندي کړی دی.

## ﴿ ۵۳ ﴾

## د پير معظم شاه (تواريخ رحمت خان)

په دې کتاب کې د پښتنو قومونو د هغه هجرت وقايع راغلي دي چې د هجري نهم قرن په دوهمه نيمايي کې يوسفزي د کندهار او ارغسان له سيمو څخه د کابل له لاري ننګرهار او د پېښور سيمو ته تر اباسين او سواته پوري خپاره سوي وو.

د کتاب مؤلف د پېښور د پير سباک کلي پير معظم شاه ولد پير محمد فاضل دی، چې د حافظ رحمت خان برېڅ په غوښتنه يې په ۱۱۸۱ ق کال په هندوستان کې په روانه او خوږه پښتو کښلی دی، او دغه اوه مقامه لري :

۱. د ښخي او غوري قومونو اصلي وطن
۲. د يوسفزو رارسېدل پېښور ته او دوابه او يا جوړ نيول.
۳. يوسفزي سوات ته ځي او بابر پاچا دلته راځي.
۴. ککياڼې دوابې ته راځي.
۵. د ککياڼو او د لازاکو جنګ.
۶. شيخ ملي دغه نوي نيولي سيمي سره ويشي.
۷. يوسفزي تر لنډي اوړي او د غورياخيلو سره جنګ کوي.

په دغو اوو برخو کې د ۸۸۰ هجري قمري کاله تر ۹۹۴ ق (۱۴۷۵ _ ۱۵۸۵ م) پوري تاريخي پېښې بيان سوي دي.

د دې کتاب اصلي ماخذ يو کتاب تواريخ افاغنه و، د ډهلي د پښتانه مشر نواب بهادرخان داودزي له کتابخانې څخه حافظ رحمت خان ته



را استول سوی و. (په دغه رساله کې نمبر ۵۲) او پير معظم شاه د ده په امر هغه کتاب نوی تحرير او ترتيب کی او نوم يې تواريخ رحمت خاني پر کېښېښود. دا کتاب په ۱۹۷۱ م کال د پېښور پښتو اکاډيمی د ښاغلي روشن خان په همت په ۱۸۸ مخه کې چاپ کی، چې په پښتو او فارسي دوارو ژبو ګډ ليکل سوی دی، او په تاريخي لحاظ يو خورا د روند او ګټه ور کتاب ګڼل کيږي. (د تفصيل لپاره وګورئ د دې رسالې ۵۲ عنوان خواجو ملېزی)

دا هم زياتوم چې د تواريخ حافظ رحمت خاني په نامه يوه غټه اردو ترجمه هم د پېښور اکاډيمی په ۱۹۷۶ م په ۷۰۰ مخو کې چاپ کړېده چې د کتاب د متن ترجمه له نورو خورا مفصلو تعليقاتو سره د ښاغلي روشن خان يوسفزي په قلم ده، او ډېري ګټوري خبري او شجرې پکښي زياتي کړي دي. چې د تاريخ څېړونکو ته په کار ورځي. (جزاء الله خيراً)

## ﴿ ۵۴ ﴾

## سعادت نامهٔ افغانی

دا په پښتو ژبه د پښتنو تاريخ دی، چې مؤلف يې سعادت خان د هدايت الله زوی و او ښايي چې د پېښور د خليلو په تپه کې تيار سوی وي. دا کتاب سل کاله دمخه په پېښور کې چاپ سوی دی چې په آخر کې يې داسې کښلي دي : "سعادت نامهٔ افغانی مطبوعه ۱۸۶۶ مطابق ۱۲۹۰ هـ. دا کتاب د پېښور د جېل چاپ خانه کې د مير اکبر د اروغه په انتظام د مستر هنری بکټ قايم مقام انسپکټر مدارس صوبه سرحد په اجازت چاپ شو"

ښاغلی روشن خان د يوسفزو يو سترګه ور ليکوال چې د دغه نسخه يې ليدلې ده داسې ليکلي چې : دا کتاب د تواريخ رحمت خاني د لفظ لفظ تاييد کوي،او د تاليف وخت يې تر تواريخ رحمت خاني وړاندې ښکاري، د يوسفزو حالات په تفصيل ليکي په کاتلنګ کې د يوسفزو او د لازاکو جنګونه شوي دي، دا کتاب يې په تفصيل بيانوي، او پښتو يې د خليلو د تپې له محاورې سره برابره ده.

دلته د نمونې په توګه دغه څو کرښې را اخیستلي کیږي : "پېښور ته راغلي پښتانه ټول درې کوره دي، او بعضي قبیلې د دې دریو قبیلو سره یو ځای اوسي، چې دوی ورته حصه لکه د ورور ورکړې ده، څو دغه همسایه دي، دا لویې کورونه درې دا دي :

اول :- خېښي

دوهم :- غوري

دریم :- کرلاني

(پښتو مجله _ اکتوبر ۱۹۷۹م _ د پېښور چاپ)

## ﴿ ۵۵ ﴾

## محمد امین سرپرېکړی د (جګړه د محمود افغان نیول د اصفهان) لیکوال

دغه مؤلف او مؤرخ محمد امین نومیږي، چې په قوم مرانی کوچی او د مرغې د غونډان و، دی د خپل عمر په ۳۶ کال په ۱۱۳۵ ق د هوتک شاه محمود په لښکرو کې د ارسلا خان ناصر تر بیرغ لاندې اصفهان ته ولاړ، او د ایران د فتح جنګونه یې ګرده په خپلو سترګو ولیدل، او یو کتاب یې په پښتو وکښل.

د دې کتاب نسخه ما نه ده لیدلې، خو د ده زوی حافظ نورمحمد یوه قصه د (بربښنا او خدی) په نامه په ۱۲۰۴ ق کښلې وه، چې خطي نسخه یې سته. د دغې قصې په سریزه کې نورمحمد داسې کاږي : "چې زما پلار د اصفهان په جګړه کې په ۳۵ کلنۍ برخه اخیستې وه، او کله چې بیرته راغی نو ده مبارک چې حال د دې جګړې په خپله لیدلی و، نو یې یو وړوکی کتاب په ژبه خوږه د پښتو کې په حال د دې جګړې کې لیکلی و، او نوم د دې کتاب "جګړه د محمود افغان نیول د اصفهان" دی. خو حق دا دی چې ډېر ښه او رښتینی بیان دی، او دا کتاب په زنیو د پښتنو له جهته د بدلو د قومو قیمتي دی، او نر و ښځي او کم و لوی یې خواهښتي دي."

(د بربښنا د قصې سریزه)



څکه چې د اصفهان د فتح په کال ۱۱۳۵ ق محمد امین د ۳۶ کالو و، نو یې د تولد کال ۱۰۰۹ ق ټاکلای سوای، چې وفات یې د نورمحمد په قول ۱۱۷۴ ق کال په ۷۵ کلنۍ کې دی.

د محمدامین زوی نورمحمد د ده له خولې وایي : "زه په دې غزا د اصفهان فتح کې ۳۶ کلنی وم د جنګ په فنونو او فتورونو کې ګرندی وم".

علاوه پر نثر او وقایع لیکنو باندې محمدامین ځیني پښتو شعرونه هم درلودل چې نمونې یې تر اوسه پاته دي.

(وګورئ تاریخي پلټني ۱۶ د حبیب الله رفیع مقاله د کابل چاپ ۱۳۵۷ ش)

## ﴿ ۵۶ ﴾

## عبدالغفار هوتک د کورنۍ د حالاتو لیکوال

دا لیکوال او د پښتو شاعر د حاجي میرویس هوتک د کورنۍ یو وروستنی سړی دی، چې پلار یې عبدالجبار خان د حاجي انګو زوی و، او حاجي انګو د میرویس نیکه وراره و، چې د ژوند وخت یې په ۱۲۰۰ ق کال شاوخوا اټکلولای سو.

عبدالغفار د پښتو دیوان او د پنځ داستان (مثنوی) او د سوداګر بچه قصه لري، خو تر ټولو ارزښتمن کتاب یې د خپلې "کورنۍ حالات" دي چې په دې کتاب کې دی د خپلې کورنۍ حالات د ګرګین خان ګرجي له ظلمونو څخه را شروع کوي او د هوتکو د دورې وقایع لیکي، چې د ده له کتابه اوس فقط ۱۵ مخه سته، او د پای خوا یې پرې سوې ده. په موجوده وروستۍ پاڼه کې د شاه اشرف هوتک (۱۱۳۷ _ ۱۱۴۲ ق) او عثماني سپه سالار احمدپاشا د جنګ قصه راغلې ده چې دا جنګ په ۱۱۴۰ ق پېښ سوی و. عبدالغفار په خپلو اشعارو کې هم کله کله ځني تاریخي وقایع او د خپل عصر مشاهیر یادوي، چې د تاریخ د څېړونکو په کار ورځي.

د کورنۍ حالات یوه ناقصه نسخه په سیوري کې د دغې کورنۍ له لمسو سره وه. (د تفصیل لپاره وګورئ : د پوهاند رشاد مقاله په تاریخ پلټنو کې تر ۱۱۵ مخ وروسته د کابل چاپ ۱۳۵۷ ش)

﴿ ۵۷ ﴾

## د باروزو جنگنامه

د باروزو قبیله د پښتنو غرغښتو ته رسیږي چې د پني له څانگې څخه ده، پخپله بارو د حسین لسمی او د پني له پښتنه څخه دی.

وایي چې د پني قبیله اصلاً د کسي له غره څخه د درۀ بولان له لاري د سانگان سیمي ته راغلې، چې د یوځایي او سیوی تر منځ یو ځای دی. له دوی څخه باروزئی تر اوسه هم پښتو وایي او ځانونه کاکړان بولي او دغه سیمه گرده د باروزیو په نامه مشهور ده، د سدوزیو پاچهانو په وخت کې د سیوی حاکمان هم دوی وو او احمدشاه بابا د دوی یو لوی مشر عیسی خان د ښکارپور په حکومت ټاکلی و. د دغه کتاب مؤلف قاضي ملا شیخ محمد دی. چې د باروزیو امیرانو مسري خان او بختیار خان په نامه د نونسم قرن په لومړیو کلو کې تالیف سوی دی ځیني برخي یې منظومي دي، او د باروزیو د خاندان شجره هم لري، د جنید خان احوال بیانوي، چې د شاه جهان معاصر وُ د (۱۰۵۰ ق حدود) بیا نو د مندراخان او احمدخان او بختیار خان احوالي او د دوی جنگونه د کلات د احمدزو، بلوڅو سره لیکي، او کله چې ډومر کاکړان پر سانگان باندي ورخیژي او باروزی رشید خان یې مخي ته دریږي دغه شخړي هم په تفصیل لیکي.

د دغه کتاب یوه خطي نسخه په دري ژبه د سیوی د کرک د کلي د سردار احمد خان سره وه چې مرحوم سلطان محمد پني څني لیدلې وه.

﴿ ۵۸ ﴾

## تذکیر البار (حالات باروزائی)

دا کتاب د باروز پښتنو پر تاریخ باندي د ملا محمود جسکاني بلوڅ په قلم د ۱۳۰۰ ق په شاوخوا کې تالیف او کښل سوی دی. چې یوه نسخه یې د سیوی پولټکل ایجنټ میکانگی ته په لاس ورغلې وه او دی وایي چې



له ۱۴۷۰ م کاله څخه د باروزو تاریخي واقعې لري، مگر بله خطي نسخه یې تر اوسه نه ده معلومه.

﴿ ۵۹ ﴾

## منظومه جنگنامه

ناظم یې په دري ژبه نورمحمد کلهوړه د قلات د میر نصیرخان د وختو قاضي القضات دی چې د علم او تقوا خاوند و او کله ځان نورمحمد گنجابی هم بولي چې گنج آباد د بلوڅي قلات په کچهی کې و، یوه نسخه یې د کلات د لوی خان په کتابخانه او بله یې د سکهر د مولا شیدایي څخه وه، دا کتاب د نظم او نثر برخي لري، چې د احمدشاه بابا په زمانه کې د میر نصیر خان لپاره تالیف سوی دی، او کوم جنگونه چې احمدشاه بابا له سکهانو سره کړي او په خپله مؤلف هم پکښې شامل و بیان سوي دي.

د احمدشاه بابا د وختو تاریخي وقایع ډېر لري او مستند ښکاري چې د اوم هندي لام بیان تر ۱۷۶۴ م پوري راغلی دی. دا کتاب گنډاسنگهه په انگریزي ترجمه او په امرتسر کې په ۱۹۳۹ م چاپ کړی دی.

﴿ ۶۰ ﴾

## د (تذکرة الملوک) نومورکی لیکوال

دا کتاب لومړی پلا هغه وخت وپېژندل سو چې د یوې خطي نسخې له مخي په ۱۹۴۳ م د انگرېزي ترجمې او ډېرو مفیدو تعلیقاتو سره د مشهور روسي مستشرق مینورسکی په همت د انگلستان په کیمبریج کې چاپ او خپور سو.

د کتاب د مؤلف نوم چا ته نه دی معلوم، خو دونې ښکاري، چې دغه گټور کتاب د ۱۱۴۰ ق په حدودو کې د شاه اشرف هوتک په غوښتنه چا په اصفهان کې کښلی دی.

موضوع يې د هوتکو د دورې ملکي تشکيلات او د دغه مملکت د ولاياتو عايدات او بودجوي مخارج او مداخل دي. چې د افغانستان د هوتکو شاهانو په تاريخ کې ښه معلومات په لاس راکوي. د دې کتاب فارسي متن په بېل ډول په ۱۳۳۲ په تهران کې هم چاپ سو.

﴿ ۶۱ ﴾

## موسی بن جرجيس د (تاريخ العجم و الافغان) ليکوال

دا يو عربي مؤلف دی چې د ۱۱۴۰ ق په شاوخوا کې ژوندی و او په لوړ نامه يې يو کتاب د ايران او افغانستان يو تاريخ وکيښ. چې له ۹۰۶ ق څخه بيا تر خپله وخته پورې وقايع بيانوي او د هوتکو فتوحات په ايران کې ښيي.

يوه خطي نسخه يې ۲۴۰ مخه د مصر په تيموريه کتابخانه کې خوندي ده او چاپ سوی نه دی.
(دکتور لطفی ـ فهرس المخطوطات المصوره طبع قاهره ۱۹۵۷ م)

﴿ ۶۲ ﴾

## د قاسم علي افريدي تاريخ

د کليات افريدي په پيل کې د قاسم علي افريدي کښلی تاريخ موجود دی، دغه تاريخ په پارسي ژبه کښل سوی، ټول بابونه يې ۲۲ دي او د کليات په لومړيو ۱۰۹ پاڼو کې خطاطي سوي دي.

د کليات افريدي يوه خطي نسخه د پېښور د اسلاميه کالج په کتابخانه کې خوندي ده. او د دغې کتابخانې په کتابونو کې يې نومره ۱۹۱۰ ده.

د تاريخ په پيل کې دا بيانونه سته : نواب محمد خان بنګښ، ذکر اولاد فتح خان و ميرخان و جهانهان.

باب چهارم ـ در ذکر اولاد جهان خان.



باب پنجم ـ در ذکر نيکنام خان افريدی.

بابا ششم ـ در ذکر وفات جد بزرگوار و احوالات ديگر سرگذشت پدر بزرگوار خود، که در شهر فن آباد چند مدت سکونت نموده، باز در کوهسار سکونت فرمودند و نيز وفات اينجا يافتند. و ديگر ذکر نواب احمد خان بهادر غالب جنگ و نواب مظفر جنگ.

باب هفتم : در ذکر يتيم شدن و سبب پرورش يافتن خود مدح راست و درست محمد سعيد خان و عبدالرحمن بهادران قندهاری.

باب هشتم ـ در ذکر تفرقه افتادن دفعه اول در رسالهٔ محمد سعيد خان بهادر قندهاری و رفتن در رسالهٔ مرزا عطابيگ خان و باز آمد در رسالهٔ خان موصوف و آمدن عبدالرحمن خان.

باب نهم ـ در ذکر امدن متعلقان من در شهر فرح آباد و سکونت ورزيدن در شهر مذکور.

باب دهم ـ در ذکر ملک متعلقه موضع اخور گويا که مسکن پدر جد بزرگوار من بود و موجبات امدن از ملک ولايت در ممالک هندوستان و سکونت ورزيدن اينجا.

باب يازدهم ـ در ذکر نشستن نواب سعادتخان بر مسند وزارت و استعفاء کردن من از نوکری، سرکار موصوف و رفتن باطراف ملک جنوب تا به سوات بندر.

باب دوازدهم ـ در ذکر حالات شهر برهانپور.

باب سيزدهم ـ ذکر رسيدن من در لشکر مهاراجه جسونت.

باب پانزدهم ـ در ذکر اوقات اسيری افواج نواب امير خان بهادر و سرگذشت ابتداء خان غفرالله و سبب مشتهر شدن به لقب نواب امير الدوله محمد امير خان بهادر دلاور جنگ.

باب شانزدهم ـ حالات مقابله جنگ فرنگ و هولکر و هزيمت يافتن افواج فرنگ.

باب هفدهم ـ در ذکر سفر کردن بجانب ملک مالوه.

باب هجدهم ـ در ذکر نواب امير خان که عبور از دريای جمن و گنگ نموده.

باب نوزدهم ـ در ذکر مصالحت و موافقت فیما بین مهاراجه جسونت سنگ و هولکر بهادر مهاراجه دولت را و سندهه.

باب بیستم ـ در ذکر نوکری ملازم بودن برای چند در سرکار میرجعفر.

باب بیست و یکم ـ در ذکر ابنای روزگار و شکایت مفارقت برادران.

باب بیست و دوم ـ در ذکر معاش و حالات وفات برادر حقیقی و عقاید و ایقان معاد اهل تصوف.

《٦٣》

## محمد امین گلستانه د (مجمل التواریخ) لیکوال

ابوالحسن محمدامین د مجمل التواریخ بعد نادریه مولف دی د دولسمي سدۍ په منځ کي د پارس اوسېدونکی و، چي د نادر شاه افشار د سلطنت او وروستیو واقعو بیان یي په مجمل کي کښلی او دا کتاب لومړی پلا په لیډن کي په ۱۸۹۱ م کال چاپ سو، چي په فارسي ژبه و ان سکارمن چاپ کی، او بیا د دغي طبع له رویه په تهران کي په ۱۳۲۰ ش د مفیدو تعلیقاتو سره چاپ سو. دغه کتاب د هوتکیانو او سدوزو او نادر افشار او زندیه شاهانو پر احوال باندي مفصل معلومات لري، او محمدامین د دې عهد یو مؤرخ ګڼه سي.

《٦٤》

## د (حقیقت بناء و عروج فرقهٔ سکهان) لیکوال

د دې کتاب لیکوال نه دی معلوم، خو د تیمورشاه معاصر ښکاري، او د خپل وخت دیرلسمي سدۍ د لومړیو برخو حال یي تر هغه وخته کښلی دی چي تیمورشاه بیرته ملتان ونیو. د دې کتاب یوه انګرېزي ترجمه بنرجي په ۱۹۴۲ م کال له کلکتې څخه خپره کړه خو د لندن رایل سوسایټي د کتابخانې په فهرست کي د دغه کتاب مؤلف په غلطه تیمورشاه ګڼل سوی



دی او خطي نسخې یي ډېري دي. د احمدشاه او تیمورشاه په وختو کي چي څه له سکهانو سره پېښ سوي دي یو معتبر ماخذ یي دغه کتاب دی.

《٦٥》

## حسین علي د (زیب تاریخها) لیکوال

دا کتاب د اتلسمي سدۍ په نیمایي کي لیکل سوی دی، او له ۱۱۶۰ ق ۱۷۴۷ م او د احمدشاه له جلوسه څخه بیا د شاه زمان تر سقوط ۱۸۵۱ م پوري یي واقعات راوړي دي چي تش یوه خطي نسخه یي اوس د ازبکستان د تاشکند د علومو د اکاډیمي په کتابخانه کي سته (۱۶۲۶ نمبر) او داسي ښکاري چي مؤلف به د شهزاده همایون سدوزي له نږدېکانو څخه وي، چي خپل تاریخ یي د ۱۲۱۸ ق د صفري په میاشت (جون ۱۸۰۳ م) کښلی دی، او دا کتاب ځکه چي تاریخ حسین شاهي (نمبر ۶۹) ته ډېر ورته دی نو ښایي چي مؤلف به له دې کتابه اخیستنه کړې وي.

《٦٦》

## محمود حسیني د (تاریخ احمدشاهي) لیکوال

دغه منشي چي محمود د ابراهیم جامي زوی نومېږي، او د نادر افشار د منشي میرزا مهدي خان شاګرد و په ۱۱۶۷ ق کال په مشهد کي د محمد تقي خان شیرازي له خوا د احمدشاه بابا حضور ته معرفي سو، چي د "مجلس نویس" په کار مقرر سي، دی حسیني سید او د جام له اوسېدونکو څخه و چي د احمدشاه د خپل دربار په منشي ګري او وقایع لیکلو وټاکه، او ده تاریخ احمدشاهي د دې پاچا له جلوسه ۱۱۶۰ ق بیا تر مرګه ۱۱۸۶ ق وکیښ چي د هر کال وقایع بېل بېل لري، او یوه خطي خوشخطه نسخه یي اوس د لیننګراد د شرقي څېړنو په مؤسسه کي سته (د ۹۳) چي په ۱۹۷۴ م کال په دوه ټوکه ۱۳۹۵ مخه کي د اتحاد شوروي د علومو اکاډیمي عکسي چاپ کړه.

دا کتاب غالباً دوه تحريره لري څکه يوه خطي نسخه يې د تهران د دانشگاه په کتابخانه کي هم سته، چي د دوارو نسخو محتويات لږ سره بېل دي، او داسي ښکاري چي د لېنن گراد نسخه د مؤلف وروستنی مکمل تحرير وي، څکه چي دغه نسخه په پای کي د مؤلف د زوی محمد اسماعيل يوه مرثيه هم لري چي د احمدشاه بابا پر مرگ يې ويلې ده.

يوه بله نسخه هم د برتانيا په موزيم کي وه (او _ آر ۱۹۶) چي د ۱۱۷۱ ق پر واقعو باندي ختمېده او تر ۱۰۲ پاني وروسته ناقصه وه. (وگورئ د ريو فهرست ۱/ ۲۱۳ د لندن چاپ ۱۸۷۹ م)

## ﴿ ٦٧ ﴾

## عبدالرحمن بن احمد روشن خان د (تاريخ احمدشاه دراني) ليکوال

دا کتاب په فارسي ژبه حسين شېرازي کربلای د عبدالرحمن له تاريخ احمدشاهي څخه ترجمه کړی دی، چي خطي نسخه يې په برټش موزيم کي سته خو دا نده معلومه چي عبدالرحمن خپل تاريخ احمدشاهي دراني په څه ژبه کښلی دی؟

## ﴿ ٦٨ ﴾

## شېخ حسين الله د (فتح نامې) ناظم

دغه مثنوي د احمدشاه بابا د لومړي هندي لام پر احوال باندي په اتلسمه سدۍ کي نظم سوی، او احمدشاهي فتح يې ستايلې ده، خطي نسخه يې د پاريس په ملي کتابخانه کي سته.



## ﴿ ٦٩ ﴾

## امام الدين حسيني چشتي د (تاريخ حسين شاهي) ليکوال

دا سړی اصلاً د افغانستان د چست له اوسېدونکو څخه و، چي په هند کي يې ژوند کاوه، او له افغانانو سره محشور و، ده خپل کتاب چي مرقع شاهان درانيه هم بلل سوی دی، په ۱۲۱۳ ق کال تمام کی، چي له احمدشاهه تر زمانخان پوري د افغانستان احوال ښيي، د شاهانو او د دربار د مشرانو معرفي په ښه ډول کوي، د ډهلي له درباره سره د افغاني دربارونو روابط ښيي، د سفيرانو نومونه او کارونه کاږي، څيني رسمي درباري خطونه هم کټ مټ ليکي، د مشهورو ځايو او لارو فواصل ښيي او د دي وختو لپاره يو عمده او باوري ماخذ دی.

يوه خطي نسخه يې د کابل په ملي ارشيف کي او نوري خطي نسخې يې د بانکي پور د خدابخش او د کلکتې د ايشياټک سوسايټي او د برټيش موزيم په کتابخانو کي سته.

## ﴿ ٧٠ ﴾

## تاريخ محاربهٔ کابل يا ظفر نامهٔ اکبری

دا کتاب ابوالقاسم دهلوي په دري ژبه نظم کړی دی، چي نسخه يې د حيدر اباد دکن په اصفيه کتابخانه کي وه، د دغه کتاب په سريزه کي ابوالقاسم وايي چي زه د سنده د انگرېزي ريزيډنټ په حکم د بلوڅو د قلات نصير خان ولد محراب خان ته واستول سوم، چي دی د کابل د پادشاه ورور ته غاړه کښېږدي او شورش بند کی نصير خان خو دا خبره ومنله، مگر د انگرېزي حکمران مطلب خو دا و چي نصير خان په يوه چم ځانته راولي او بيا يې نو ونيسي، له دې جهته يې ابوالقاسم وتراټه.

تر دې وروسته ابوالقاسم له سنده بيرته ډهلي ته ځي او دغه خپل کتاب نظم کوي او داسي ښکاري چي د انگرېز او افغان په لومړي جنگ کي

ده په خپله تولي واقعې په خپلو سترگو لیدلي وې او ځیني رسمي سندونه يې هم کتلي وو. (د مولوی سید محمد حسین اغلب موهاني نیرنگ افغان ـ ۵۴ د لکهنو چاپ ـ ۱۹۰۴ م)

د هندي مؤرخانو په اصطلاح محاربهٔ کابل د افغانستان د خلکو او انگرېزانو لومړی جنگ دی، چي له ۱۸۳۹ تر ۱۸۴۲ م پوري د انگرېزانو د هندوستان امپراتوري د افغانستان د خلکو پر اوږو راوځپاوه او خپل تول لښکر او اعتبار يې دلې بایلوول، دا کتاب ظفرنامهٔ اکبري څکه بلل سوی دی چي په لومړي جنگ کي وزیر اکبرخان د امیر دوست محمد خان زوی هم د خلکو ملگری و، ظفرنامه په اردو ژبه هم شيخ ذوالفقار سجونپوري ترجمه کړې وه. (وگوری: نمبر ۱۲۳)

## ﴿ ۷۱ ﴾

## فدا حسین د (تاریخ افغانستان) لیکوال

د دې کتاب لیکوال سید فدا حسین ترکسواز بخاري نومیږي چي د افغانستان په لومړي جنگ کي شامل و، او د خپلو سترگو لیدلی حال يې وکيښ، وروسته دی د امیر دوست محمد خان سره لودهیانې ته ولاړ او تر تقاعد وروسته په ډهلي کي اوسېدی، او خپل کتاب يې په ډهلي کي چاپ کی. دغه کتاب د پیسه اخبار د خپروونکي محبوب عالم په لاس کي و او د تذکرهٔ اصول امیر دوست محمد خان په لیکلو کي يې ډیري خبري څني را اخیستي دي. (د نیرنگ افغان ۶۴ مخ)

## ﴿ ۷۲ ﴾

## کاشي راج پنډت د (احوال جنگ بهاو و احمدشاه دراني) لیکوال

دا سړی د جنوبي هند و چي د نواب صفدر جنگ او د ده د زوی نواب شجاع الدوله نوکر و، چي دغه شجاع الدوله د پاني پت په جنگ کي د



احمدشاه ملگری و، څکه چي کاشي راج د اوده په دربار کي څلوېښت کاله منشي و، او رسمي سندونه يې هم کتلای سوای، نو د ده (بهاونامه) ثقه تاریخي کتاب گڼل سي. او خطي نسخې يې د هند په کتابخانه کي سته، چي جیس براون په ۱۷۹۱ په کلکته کي په انگرېزي ترجمه او چاپ کی، او بیا په اکسفورډ کي په ۱۹۱۶ م کال هم چاپ سو، او دوهمه ترجمه يې سرجادونا ته سرکار په ۱۹۳۴ م خپره کړه.

## ﴿ ۷۳ ﴾

## غلام حسین ثمین د (حالات امدن احمدشاه درانی در هندوستان در سنهٔ ۱۱۶۹ هـ) لیکوال

د دې کتاب فارسي خطي نسخه د هند د رامپور په کتابخانه او د لندن په شاهي سوسایټي کي سته.

کله چي احمدشاه په خپل څلورم لام کي د اگرې او متهوري پر ډگر جنگ کاوه ثمین هلته حاضر و، او خپل لیدلی حال يې وکيښ. دی د فرخ آباد نواب عماد الملک (۱۷۵۶ ـ ۱۷۵۷ م) ته نژدې سړی و چي کتاب يې ولیم ایروین هندي لرغون څېړونکي په ۱۹۰۷ په انگرېزي نشر کی.

## ﴿ ۷۴ ﴾

## عبدالکریم کشمیری د (بیان واقع) مؤلف

دا مورخ چي په ۱۱۶۶ ق يې خپل کتاب کښلی دی، د احمدشاه بابا لومړی عسکري سفر هند ته بیانوي، چي خطي نسخه يې هم په دغه کال کښلې سوې ده او څو نوري نسخې يې هم میندلې کیږي. په خپل موضع کي مفید کتاب دی. (احمدشاه درانی ۴۲۶)

یادونه : دغه کشمیری عبدالکریم له علوي او بخاري عبدالکریم سره مه گډوئ. کله چي نادر افشار له هندوستانه بیرته تی، کشمیری ورسره ملگری و. او دغه احوال يې د هندوستان له تاریخه سره (له ۱۷۳۹ م څخه تر

۱۷۸۸ م پوري) وکېښ چي انګرېزي ترجمې يې په ۱۷۸۸ م په کلکته کي خپرې سوي دي. (وګورئ عبدالکريم ۹۵ عبدالکريم علوي ۳۴)

## ﴿ ۷۵ ﴾

## محمود الموسوي د (کتاب اقوام و فرقه های افغان) ليکوال

دا کتاب (احوال اقوام چهارګانهٔ افغان) هم بلل سوی دی، چي د پښتنو د څلورو قبيلو ابدالي يا دراني، غلجي، بردراني يا روهيلي او سور او يوسفزو بيان دی، او د هري قبيلې څانګې او مشهور خلک هم د درانو له عروجه د شاه شجاع تر مرګه ښيي. دغه مؤلف ظاهراً د سدوزو د دربار د منشيانو له مشهوري موسوي کورنۍ څخه ښکاري. څکه چي دغه کورنۍ خو د ميرزا هادي عشرت د احمدشاه منشئ له وخته په دربار کي وه، دغه کتاب په ۱۲۲۳ ق تاليف سوی او يوه نسخه يې په ۱۸۵۰ م کښلې سوې ده چي په برټش موزيم کي سته.

## ﴿ ۷۶ ﴾

## محمد علي انصاري د (تاريخ مظفري) ليکوال

د ۱۸۱۲ م ليکلې خطي نسخه يې د پاريس په ملي کتابخانه او د حيدرآباد په آصفيه لايبريري کي سته. د هندوستان عمومي تاريخ دی چي د احمدشاه لامونه پر هندوستان بيانوي او خورا ګټه ور معلومات لري او پر دغه موضوع يې بل کتاب بحر المواج هم کښلی دی چي نسخې يې په برټش موزيم او د پاريس په ملي کتابخانه کي سته. په دې کتاب کي تر ۱۲۱۱ ق پوري وقايع ليکل سوي دي. دغه انصاري ته يو بل کتاب هم د تاريخ احمدشاهي په نامه منسوب دئ چي په ۱۱۹۶ ق يې کښلی و او خطي نسخې يې په برټش موزيم او انډيا آفس کي سته.



## ﴿ ۷۷ ﴾

## محمداسلم د (فرحت الناظرين) ليکونکی

دغه کتاب په ۱۱۸۴ ق د هند پر عمومي تاريخ باندي کښل سوی او د احمدشاه پر هندي لامونو باندي خورا مفيد مواد لري، خطي نسخه يې د هند د کپور تلي په حکومتي کتابخانه کي سته.

## ﴿ ۷۸ ﴾

## محمديوسف سدوزی د (کليات رياض) ليکوال

محمد يوسف د محمدحسن خان سدوزي زوی متخلص په رياض د هرات د حکمرانو سدوزو له کورنۍ څخه دی کليات يې بحرالفوايد هم نوميږي، په ۵۷۲ مخو کي په ۱۳۲۴ ق په مشهد کي چاپ سو او دوولس برخي دی:

۱. بيان الواقعه
۲. ضياء المعرفه
۳. عين الوقايع
۴. دفتر دانش
۵. پاسخ و پرسش
۶. فيض روحاني
۷. منبع البکاء
۸. تخميسات
۹. رباعيات
۱۰. پريشان
۱۱. اوضاع البلاد
۱۲. خاتمه

په دې کتاب کي تاريخي وقايع او په هرات کي د سدوزو سوابق او اوضاع او د درانو د وختو ډېري واقعې ضبط سوي او مؤلف يې په تاريخ

خبر دی د خپل عصر یو فعال او په اوسنی دنیا مطلع سړی و، چې د
نونسمې سدی په پای کې یې په خراسان کې ډېر شهرت موندلی و، او کله
چې په لومړي جنګ کې تزاري لښکر مشهد ته راغله دی په جنګ کې ووژل
سو، کتاب یې د ادبیاتو او واقعه نویسی او تاریخ لیکلو یوه ګډه وډه نمونه
ده او ډېر اطلاعات یې سره راټول کړي او په عین الوقایع کې یې د
افغانستان د ۱۲ جنګو بیان کښلی دی.

﴿ ۷۹ ﴾

## د اکماس کردي (جنګنامه)

دا کتاب په کردي ژبه په ۱۱۷۴ ق کال اکماس کرد په ایران کې
کښلی او د سلطان حسین صفوي او محمود او اشرف افغان او نادر
افشار حال یې بیان کړی دی. د دې کتاب یوه خطي نسخه د ایران د سنا په
کتابخانه کې ۱۷۹ مخه نمبر ۱۳۶ سته چې په ۱۸ صفر ۱۲۷۷ ق ملا فرح
الله بن عزیز الله کښلی دی. "وګورئ نسخه های خطی، کتابخانه مجلس سنا
۴۵۰ دفتر ۶ تهران چاپ ۱۳۴۸ ش"

﴿ ۸۰ ﴾

## محمد جعفر شاملو د (منازل الفتوح) لیکوال

دا سړی اصلاً د صفویانو نوکر و، چې د احمدشاه سره په هندي
لامونو کې ملګری و، ده له کندهاره د غزني او کابل او پېښور له لاري تر
ډهلي پوري د ټولو پړاوونو او د پاني پت د جنګ احوال په منازل الفتوح کې
کښلی دی، چې دی په دغه جنګنامه کې په خپله حاضر و، د دغه کتاب
خطي نسخې په برټش موزیم او د امرتسر په خالصه کالج کې سته.



﴿ ۸۱ ﴾

## د (تاریخ فیض بخش) لیکوال شیوپرشاد

د هندوستان په کاتهر کې چې کوم روهیله افغانان اوسي دا د دوی
تاریخ دی، چې خطي نسخه یې په ۱۷۷۶ م کښلی سوې ده او په برټش
موزیم او اشیاټک سوسایټی، لندن او د کلکتې په قومي کتابخانه کې سته.

﴿ ۸۲ ﴾

## عروج و خروج احمدشاه دراني

دا کتاب د ۱۷۸۰ م په شاوخوا کې یوه نامعلوم مولف کښلی دی چې
یوه نسخه یې د جان ریلنډ په کتابخانه مانچسټر کې وه، او د احمدشاه
لامونه پر هندوستان بیانوي.

﴿ ۸۳ ﴾

## سوهن لال سوري د (عمدة التواريخ) لیکوال

سوهن لال پلار منشي کنپت رای او نیکه یې لاله حکومت رای سوري
د احمدشاه دراني او د مهاراجه رنجیت سنګ د اسلافو معاصرین وو، چې
دوی د خپل عصر معلومات سره راټول کړي او سوهن لال ته یې پرېښي وو،
دغه لیکوال هغه ډول یاد داشتونه په پنځه ټوکه کې سره راغونډ کړل، چې
کتاب یې ډېر تاریخي ارزښت لري او په لومړي دوو ټوکو کې د احمدشاه
لامونه پر پنجاب باندي بیانوي، چې په لاهور کې په ۱۸۸۵ م کال چاپ
سوي دي.

﴿ ۸۴ ﴾

## (تهماس نامه) د تهماس خان ليکنه

دا سړی د احمدشاه بابا په وختو کې د معين الملک او د ده د مايني مغلانۍ بېګم او ضابطه خان روهيله خدمتګار ؤ او خپل حال يې په خپله کښلی دی چې په هغه کې يې د پاني پت جنګ او د احمدشاه د هندوستان د لامونو په سترګو ليدلي حالات بيان کړي دي، ۱۱۹۳ ق. د امرتسر د خالصه کالج په کتابخانه کې چې يې خطي نسخه سته هغه په ۱۴۲۸ کښلې سوې ده، په برټش موزيم کې يې هم نسخه سته.

﴿ ۸۵ ﴾

## تاريخ احمدشاهي

د دې کتاب د ليکوال نوم نه دی معلوم خو په ۱۱۶۷ ق يې د احمدشاه رنګيلا احوال کښلي او د احمدشاه دراني د هند د جنګي سفرونو مفيد معلومات يې سره راغونډ کړي دي. خطي نسخې يې په برټش موزيم او د امرتسر په خالصه کالج کې سته، يو لندون يې سرجادونات سرکار په انګريزي هم چاپ کړی دی.

﴿ ۸۶ ﴾

## مراسلات احمدشاه

دا يوه مجموعه فرامين او خطونه دي چې احمدشاه د ډهلي د پادشاه دوهم عالمګير او نورو روهيلي افغاني مشرانو په نامه کښلي دي، د راجپوتو خانانو په نامه هم خطونه سته چې له ۱۱۷۳ ق څخه تر ۱۱۷۶ ق پورې په واقعاتو اړه لري او خطي نسخه يې د امرتسر د خالصه کالج په کتابخانه کې وه.



﴿ ۸۷ ﴾

## (شاهنامه احمديه) د نظام الدين عشرت مثنوی

دا شاعر د احمدشاه معاصر و، چې شاهنامه يې د احمدشاه په نامه نظم کړه او د پاني پت لام يې پکښې بيان کی. دا مثنوي چې عشرت سيالکوټي نظم کړې دی تقريباً ۵۰۰ بيته لري چې ۱۱۷۴ ق ويلي سوي دي لومړی عنوان يې پسله حمد و نعمته له بدقولي وزير هند و آرايش لشکر څخه شرو کيږي. خو احمدشاه په پېښور کې د ميا عمر څمکني څخه د غزا اجازت اخلي او بيا په سرهند کې د شيخ احمد سرهندي زيارت کوي ډهلي نيسي او شاهزاده والا ګهر پر تخت کښېنوي، د دې کتاب يوه نسخه ما د پېښور د بالاماني په کتابخانه کې ليدلې وه په برټش موزيم او د حيدر آباد په آصفيه کتابخانه کې هم سته.

﴿ ۸۸ ﴾

## د قدرت الله صديقي (جام جهان نما)

د مغولو د پاچهي تاريخ دی، چې د ۱۱۹۱ ق تر ۱۱۹۹ ق پورې وقايع ليکي، په دې کتاب کې يې د روهيلو او نورو افغانانو احوال په تفصيل کښلي دي، چې خطي نسخې يې د لندن د ايشياټک سوسايټي په کتابخانه او د هند د پټيالې په آرشيف کې وي.

﴿ ۸۹ ﴾

## د شېرمحمد خان (زبدة التواريخ)

دا کتاب وقايع ملتان هم نوميږي چې د ملتان پر تاريخ يې کښلی او مخصوصاً يې د دغه ولايت پر افغانانو حکمرانانو باندې ښه معلومات سره راټول کړي دي، خطي نسخې يې د لندن د شاهي ټولنې په کتابخانه او د امرتسر په خالصه کالج کې وي.

﴿ ۹۰ ﴾

## تاریخ بلوچستان

دا د اخوند ملا محمدصدیق تالیف دی، چي د ملا فتح محمد زوی او د فتح محمد پلار ملا حیات د ملا شهداد زوی و، چي دغه ملا شهداد له خپل ورور سره د اتلسم قرن په اولو وختو کي د بلوڅو قلات ته راغی او په مهري کي اوسېدی.

ځکه چي دغه دواړه ورونه د فضیلت خاوندان وو، نو يې د قلات د خانانو دربار ته لار وموندله او د خان قلات میر احمدخان تر وفات وروسته له دغي کورنۍ څخه صالح محمد وزیر ؤ، بیا نو د میر نصیر خان په وختو کي ملا حیات د ملا شهداد زوی او بیا فتح محمد وزیران وو، د دوهم میر نصیر خان تر وختو او ۱۸۴۵ م پورې وزیران له دغي کورنۍ څخه وو.

اخوند محمدصدیق په مستونګ کي زوکړی او خپل تاریخ يې په ۱۱ رمضان ۱۲۷۶ ق ختم کړ، چي سل مخه لري او یوه خطي نسخه يې د کوټي د سید عبدالمجید شاه سره او بله نسخه يې د بلوڅو د کلات په کتابخانه کي ده.

هیتورام په خپل کتاب تاریخ بلوچستان کي له دغه کتابه نقل کوي چي د بلوڅو د قبیلو خپل داخلي جنګونه بیانوي او بیا د هوتک شاه حسین حملې پر شال او مستونګ او قلات باندي ښیي، او د میر محبت خان او نصیر خان احوال تر میر محراب خان او ۱۸۴۵ م کاله په دري ژبه لیکي.

﴿ ۹۱ ﴾

## د میرزا احمدعلي کتابچه

دا هم یو خطي کتابګوټی دی چي یوه نسخه يې د قلات په کتابخانه کي وه مؤلف يې احمدعلي د خداداد خان د وختو د شاغاسي ولي محمد د مخ سړی دی. (۱۸۵۷ _ ۱۸۹۳م) دغه کتابچه له ۱۸۱۷ تر ۱۸۹۳ پورې د



کلات د خانانو محراب خان او دوهم میر نصیر خان او خداداد خان احوال لري، مؤلف يې په سنده کي ملازم و، په فارسي يې شعر هم وایه خطي دېوان لري. دا کتاب د قلات د بلوڅو خانانو روابط له افغانستانه سره هم نیسي.

﴿ ۹۲ ﴾

## انندرام د (بدایع وقایع) لیکوال

دا سړی چي مخلص يې شعري تخلص دی، د احمدشاه په وختو کي د هند د لاهور اوسېدونکی و، او د بدایع وقایع په نامه يې د خپل عصر واقعات په فارسي وکښل. چي په هغو کي اکثر د احمدشاه بابا د هند د جنګي سفرونو بیان راغلی دی، او یوه برخه يې په ۱۹۵۰ م د لاهور په اورینټل کالج میګزین کي چاپ سوې ده.

مخلص د ډهلي او لاهور په دربارو کي محشور سړی و. وقایع يې تر ۱۷۴۸ م پورې کښلي دي او په ۱۷۵۱ م په ډهلي کي مړ دی. د ده کتاب د احمدشاه پر لومړي هندي لام باندي مفید ماخذ دی.

﴿ ۹۳ ﴾

## هانوي جونس د (انقلاب پارس) لیکوال

هانوي جونس یو انګرېز سیاح دی. چي د اتلسم قرن په نیمایي کي هغه وخت په ایران کي و چي اصفهان د پښتنو هوتکو شاهانو په لاس کي و.

ده په انقلاب ایران کي چي څلور ټوکه دی د افغانانو د حملو او جنګو حال په تفصیل په ۱۷۵۳ کال کښلی دی او بیا يې خپله دوه ټوکه د ایران سیاحت نامه په ۱۷۵۴ ولیکله، چي دغه دواړه د افغانستان د تاریخ ښه منابع دي.

(وګورئ: ببلوګرافي پرشیا ص ۹۱ د لندن چاپ)

## ﴿ ۹۴ ﴾

## د محمد حسن مستوفي (زبدة التواريخ)

دا کتاب يې په ۱۱۵۴ ق کښلی دی چې خطي نسخه يې د برتانيا په موزيم کې په نمبر ۳۴۹۸ (او ـ آر) سته له ۱۹۶ پاڼي څخه يې د ميرويس او شاه محمود حال شروع کړی دی.

(وګورئ : د ريو تکمله ۲۴ لوړ نمبر)

## ﴿ ۹۵ ﴾

## مير عبدالکريم نديم د افغان او بخارا مؤرخ

دا ليکوال د ديرلسم هجري قرن له مؤرخانو څخه دی، چې د اسماعيل افغان زوی او اصلاً د کابل د شاه محمود سدوزي د دربار سړی و په خپله وايي (از بلاد کابلم در خدمت محمود شاه).

دی په ۱۲۱۹ ق کال د بخارا په دربار کې و او د بخارا د سفير امير علاء الدين سره يو ځای روس ته وليږل سو، نه مياشتي په پترسبورګ او مسکو کې او بيا اته مياشتي په استرخان کې و.

کله چې شاه محمود سدوزي لومړی پلار له کابله بخارا ته وتښتېدی نو دی له شاه محمود سره يو ځای و او د بخارا په دربار کې يې د قراول بيګی منصب هم درلود.

په ۱۲۱۲ ق ۱۸۰۷ م عبدالکريم د بخارا د يوه بل سفيره سره د روس له لاري استانبول ته ولاړ او هلته يې يوه ترکه ماينه وکړه، تر ۱۲۳۳ ق ۱۸۱۸ پوري هلته د بخارا د سفارت منشي و او د ګانکوفسکي په قول په ۱۸۳۰ م کال په استانبول کې مړ سو (د درانو امپراتوري ۱۳ مقدمه د کابل چاپ ۱۳۵۷ ش).

د عبدالکريم له خپلو ليکنو څخه ښکاري چې دی ۱۸ کلن کشمير ته تللی او دوهمه پلا يې بيا کشمير ليدلی و په فارسي يې شعر هم وايه.



د نديم مهم کتاب په اوزبکي ژبه (افغان و کابل د بخارا و خيوق و خوقند خانګرينګ احوال و حکايات) دی چې له ۱۱۵۳ ق څخه بيا تر ۱۲۲۳ ق پوري چې د کتاب د تکميل کال دی، د دغو هيوادو تاريخي واقعې او ګټه ور اطلاعات پکښي ليکل سوي دي چې يوه د ۱۲۶۴ ق کال مخطوطه يې د استانبول د عارف بای په کتابخانه کې وه او اوزبکي متن يې په ۱۲۴۲ ق په استانبول کې چاپ سوی و. داسي ښکاري چې د دغه کتاب فارسي متن هم په خپله مؤلف کښلی و چې لومړی توک يې د مصر په بولاق کې په ۱۸۷۳ م کال چاپ سو، بيا يې فرانسوي ترجمه د تعليقاتو سره چارلس شيفر په پاريس کې په ۱۸۷۶ کال نشر کړه (ګنداسنګ، احمدشاه دراني ۴۲۶).

يادونه : دغه بخاري عبدالکريم (نديم يا نادم) له علوي عبدالکريم (نمبر ۳۴) او کشميري عبدالکريم (نمبر ۷۴) سره مه ګډوئ.

## ﴿ ۹۶ ﴾

## محمدرحيم بخش د (دولت درانيه) ليکوال

دا کتاب په اردو ژبه ۱۴۴ مخه د ډهلي په قومي پريس کې په ۱۳۲۱ ق چاپ سو، چې مؤلف يې مولوي محمدرحيم بخش و. او د احمدشاه دراني احوال يې تر شاه زمانه (۱۱۶۰ ـ ۱۲۱۳ ق) پوري کښلي دي. دغه وقايع دمخه لا د ډهلي په قومي اخبار رفيق کې له ۲۵ اکتوبر څخه تر ۲۵ نومبر ۱۹۰۳ م نشر سوي وو، چې د رفيق اخبار د سيد ظهور الحسن په مديريت خپرېدی.

## ﴿ ۹۷ ﴾

## د مير محمد باقر ياد داښتونه

دا مؤلف هغه وخت په اصفهان کې و چې په ۱۱۳۵ ق هوتکو پښتنو پر دې ښار حمله وکړه د صفويانو د سقوط حال يې په سترګو وليد او هغه يې

په خپلو یاد داښتونو کي بیان کی، چي د افغانستان د هوتکو د دورې یو ښه منبع گڼل کیږي. (یغما شماره ۳ کال ۷)

## ﴾ ۹۸ ﴿

## محمدطاهر وحید قزویني د (عباس نامې) مؤلف

ده خپل کتاب د دوهم شاه عباس صفوي په نامه کښلی دی او د صفویانو په وروستیو کي د هرات او کندهار ځیني تاریخي واقعې ښیي. د ایران په اراک کي په ۱۳۲۹ ق یې نسخه کښل سوې ده.

## ﴾ ۹۹ ﴿

## د محمدعلي حزین تذکره

دا سړی د شاه محمود هوتک د حملې پر وخت ۱۱۳۵ ق په اصفهان کي و او له دغه ځایه هند ته وتښتېدی او د سترگو لیدلي واقعې یې په خپله تذکره کي وکښلې. چي د هوتکي دورې لپاره یو ماخذ گڼه سي. دا کتاب څو واره چاپ سوی دی آخرنی طبع یې د تهران ده، په ۱۳۳۴ شمسي کال.

## ﴾ ۱۰۰ ﴿

## د بصیرت نامې لیکوال

دا کتاب عبرتنامه هم بللی سي. یوه اروپایي گرزندوی د هوتکو د فتح په کال په اصفهان کي وکښلی او خپل د سترگو لیدلي احوال یې پکښې تصویر کړي دي.

دا کتاب ابراهیم په ترکي او عبدالرزاق په فارسي ترجمه کړی دی. چي خطي نسخې یې په ایران کي سته او د یغما مجلې د ۷ کال په ۴ مه شماره کي له دې کتابه احوال افغان رانقل سوي دي.



## ﴾ ۱۰۱ ﴿

## عبدالنبي بهبهاني د (بدایع الاخبار) لیکوال

دا کتاب په دوولسم قرن کي په فارسي تالیف سوی او موضوع یې د افغانانو حمله پر ایران ده چي د هوتکو پښتنو په دوره اړه لري. خطي نسخه یې په برټش موزیم کي سته.

## ﴾ ۱۰۲ ﴿

## تاریخ خاندان سدو و میر افغان

دا کتاب په فارسي ژبه د سدوزو د کورنۍ پر تاریخ باندي کښل سوی او مولف یې معلوم نه دی. خطي نسخه یې د لندن په انډیا آفس کي سته.

## ﴾ ۱۰۳ ﴿

## عبدالله د (تاریخ داودي) لیکوال

دا سړی د ۱۰۱۰ ق په شاوخوا کي د جانگیر په وختو کښې ژوندی و او دغه کتاب یې د لودیانو او سوریانو پر تاریخ باندي د سلطان بهلول لودي څخه تر (۹۸۳ ق) پوري کښلی دی، چي په کلکته کي د بنگال ایشیاټک سوسایټي چاپ کی، خطي نسخې یې په برټش موزیم او بانکي پور کي سته.

## ﴾ ۱۰۴ ﴿

## ملا اختر د تاریخ لیکوال

دا سړی له کومه بله ځایه هیڅ ما نه دی پېژندلی خو بیلیو انگرېزي طبیب چي په ۱۸۵۷ م کال د سیاسي فد سره کندهار ته راغلی و داسي لیکي: چي ماته د کندهار حکمران سردار غلام حیدر خان د امیر دوست

محمد زوی اوه ټوکه تاریخي کتابونه راکړل او په هغو کي یو د ملا اختر تاریخ و چي په ۱۱۶۳ ق ۱۷۴۱ م کال تالیف سوی دی، او په دې کتاب کي داسي کښلي دي چي تر قیس دمخه درې ورونه وه: بلو (د بلوڅو پلار) ازبک او افغنه.

بیلیو خو د پښتنو پر نژاد او قبیله شناسي باندي ډېر مطالب لري خو د نورو هغو کتابو نومونه یې نه دي کښلي، کوم چي سردار غلام حیدر ده ته بخښلي وو. (وګورئ د ۱۸۵۷ م د سیاسي وفد رویداد په افغانستان کي د لندن چاپ ۱۸۶۲ م)

## «۱۰۵»

## محمد کاظم مروي د (نامهٔ عالم آرا) لیکوال

دا سړی اصلاً د مرو وزیر و، او نامهٔ عالم آرا نادري یې د نادر افشار لپاره وکښله چي په هغه کي یې د هوتکانو د پاچهۍ احوال د میرویس خان له غورځنګه بیا د شاه محمود او شاه اشرف احوال د نادر افشار تر جلوسه کښلي دي. لومړی ټوک یې په عکسي ډول په ۱۹۶۰ م کال له مسکوه څخه طبع او خپور سو.

## «۱۰۶»

## احمد علي خان وزیري د تاریخ کرمان لیکوال

دا سړی د قاجاري دورې د ۱۳۰۰ ق کال د کرمان اوسېدونکی و چي د کرمان تاریخ یې کښلی او په ۱۳۴۰ ش په تهران کي چاپ سوی دی.

په دې کتاب کي د افغانانو د جنګو او د دوی د کورنیو احوال د شاه محمود هوتک له وخته تر ۱۱۳۵ ق څخه بیا د قاجاري دورې تر آخرو وختو پوري راغلي دي او د افغانانو داسي کورنۍ او اشخاص یې هم ذکر کړي دي، چي تر هوتکیانو وروسته یې د زندیانو او قاجاریانو په وختو کي د کرمان او پارس پر سیمو سرداري کوله.



## «۱۰۷»

## د ایران او اروپا روابط د صفویانو په وختو کي

دا کتاب له اروپایي ژبي څخه د (تاریخ ایران و اروپا در عهد صفویه) په نامه عباس پرویز ترجمه کړی او په ۱۳۱۷ ش کال یې په تهران کي چاپ کړی دی، چي په ایران کي د هوتکیانو د وختو ډېر سیاسي واقعات بیانوي.

## «۱۰۸»

## ظفرنامهٔ خسروی

په دې نامه یوه خطي نسخه د تاجکستان د ختیځ پوهني په څانګه کي سته، چي مولف یې معلوم نه دی خو ښایي چي د بخارا امیر نصرالله خان د دربار یو منشي وي، چي د (۱۸۲۶ تر ۱۸۶۰ م) کاله یې وقایع کښلي او د دغه امیر دربار یې په مفصله توګه ښوولی دی، دا کار د بل چا له لاسه نه و پوره، مګر د داسي چا چي په دربار کي به محشور و، په دې کتاب کي د بخارا او افغانستان سیاسي روابط او د شمالي افغانستان ځیني اوضاع ښوول سوي دي.

(د نظراوف د بخارا او افغانستان روابط د تاجکستان چاپ)

## «۱۰۹»

## خاینکوف د بخارا د خانۍ او علمي تحقیقاتو لیکوال

ن. و خانیکوف د روس د تزاري دورې یو مشهور عالم او سیاح دی چي په ۱۸۴۱ م کال د بوتینیف له سفارتي ډلي سره بخارا ته راغی او د بخارا د خانۍ هیواد پراحوال یې خپل مشهور کتاب وکیښ. بیا په ۱۸۵۷ م کال دی د افغانستان پر خوا د یوې علمي ډلي مشر و، چي امیر دوست محمد خان دوی کابل او کندهار ته نه پرېښوول او دې ډلي خپل علمي سفر

په هرات کي ختم کی. د دې سفر مشاهدات هم گرده په علمي ډول ترتیب سوي او په هغو وختو کي په روسي ژبه خپاره سوي دي، او د افغانستان د هغه وخت ځني اوضاع ښه راښيي.

﴿ ۱۱۰ ﴾

## نورمحمد د (تاریخ سلیماني) لیکوال

مولف يې د پنجاب د میانوالی له پښتنو څخه حاجي نورمحمد سلیماني دي چي د تولد تاریخ يې ۲۶ رمضان ۱۲۵۰ ق و، دی ځیني نور تالیفونه هم لري. ارشاد نوري يې د تصوف او طریقت بیان کوي او زاده الاعوان يې تاریخ دی.

دی په تاریخ سلیماني کي د افغان اولیاوو احوال لیکي، چي له هغو څخه د خواجه سلیمان او مکي خان او ابراهیم او موسی او ملا یوسف احوال شهاب الدین خان په خپل تاریخ کي راوړي دي.

(تاریخ افاغنه ۲ _ ۹۰)

داسي ښکاري چي تاریخ سلیمان د پښتنو د تاریخ یو کتاب و، ځکه چي اکثر عرب او عجم پښتانه سلیماني بولي.

﴿ ۱۱۱ ﴾

## شاه محمد د (تاریخ خاندان سدوزایي) لیکوال

دا کتابگوټی شاهزاده شاه محمد سدوزایي د سنده په تهلی کي په دري ژبه تالیف کړی او په ۳۰ نومبر ۱۹۱۳ م غره محرم ۱۳۳۲ ق يې پای ته رسولی دی. په خپله دغه مولف ولد جان محمد بن خدادا بن تاج محمد بن پیرمحمد بن ایوب شاه بن تیمور شاه بن احمدشاه و. چي په لومړي فصل کي د ایوب شاه په دوهم فصل کي د ایوب شاه زامن په دریم فصل کي د شهزاده پیرمحمد سفر شکارپور ته په څلورم فصل کي د دغه شهزاده مرگ په ۱۸۸۴ م کي ښيي. په پنځم فصل کي د پیرمحمد زامنو او شپږم فصل د



شهزاده شاه محمد د میرې بیان او اووم فصل د شاه محمد تکالیف اتم فصل د نورجهان او نهم فصل د شاهزاده دین محمد یادوني دي.

د دغه کتاب خطي نسخه ما د شکارپور ګړي یاسین د دراني بدر عالم په کتابخانه کي لیدلې وه، او د سدوزو د کورنۍ د ایوب شاه د ټبر شجرهٔ نسب په دې دوو سوو کلو کي ځني معلومیږي.

﴿ ۱۱۲ ﴾

## محمد حسن خان مراغی د (مطلع الشمس) لیکوال

دا سړی د ایران د قاجاري دربار یو مهم رکن و، چي د صنیع الدوله او اعتماد السلطنه لقب یې درلود (متوفي ۱۳۱۳ ق) او خپل کتاب یې د مطلع الشمس یعني خراسان په نامه درې ټوکه کښلی دی. چي دوهم ټوک یې د دې سیمي تاریخ له ۱۰۳۶ څخه تر ۱۸۸۵ م پوري بیانوي او ځیني واقعات یې په سترگو هم لیدلي دي.

دا کتاب د افغانستان د درانو شاهانو روابط د خراسان له یوې قدیمي برخي طوس او نشاپور سره بیانوي او د احمدشاه فوجي لامونه پر دې سیمه په تفصیلي ډول لیکي. (د تهران چاپ ۱۳۰۱ ق)

د ده بل تاریخي کتاب منتظم تاریخ ناصري دوه ټوکه په تهران کي چاپ سوی و، چي په دې کتاب کي هم د درانو شاهانو د وختو واقعات په هرات او غربي افغانستان کي بیان سوي او په دوهم ټوک کي د صفویانو د سقوط احوال او پر اصفهان د افغانانو قبضه بیانوي، چي د هوتکو د وختو لپاره ښه منبع کېدای سي، کله کله ځیني رسمي اسناد او فرامین هم رانقل کوي.

﴿ ۱۱۳ ﴾

## فریه فرانسوی گرزندوی د افغانانو د تاریخ لیکوال

دا سړی یو فرانسوی سیاح او پلټونکی لیکوال دی، چي د نونسمي پېړۍ په لومړۍ برخه کي په افغانستان کي گرزېدلی، او مخصوصاً یې

هرات او د افغانستان غربي سيمي ليدلي دي. د ده (تاريخ افغانان) له لندنه
په ۱۸۵۸ م کي خپور سو، چي هم تاريخي مواد هم د عمومي بشر پيژندني
او جغرافيا او جامعه شناسی ښه ذخيره لري.

## 《 ۱۱۴ 》

## فارسي اخبارات و مراسلات

د شرقي هند کمپنۍ چي د اتلسمي سدۍ څخه بيا تر نونسمي سدۍ
پوري د خپلو استعماري غرضو لپاره په افغانستان کي کوم جاسوسان يا
خبريالان مقرر کړي وو او هغو به د دې ځای د رسمي او اقتصادي او
اجتماعي احوالو رپورتونه خپلو مرکزونو ته ورکول داسي مواد خورا ډېر دي
چي د دې سيمي د تاريخي واقعو هنداري دي.

د ډهلي په ملي ارشيف کي چي څه مواد سته له هغو څخه ۲۳۱ هغه
خطونه دي چي له ۱۷۷۶ څخه تر ۱۸۰۳ م پوري د کمپنۍ او د هندوستان
او افغانستان په روابطو پوري اړه لري. او دغه مجموعه ډاکتر پرماتماشرن په
۱۹۶۶ م کال له ډهلي يونيورستي څخه خپره کړه چي فارسي متن يې ۵۲۲
مخه او مقدمه او فهرستونه يې ۱۰۴ مخه دی، نقشې او تصاوير هم لري.

په دغو سندنو کي د افغانستان د تيمورشاه او شاه زمان د وختو ډېر
پاخه اطلاعات سته چي زموږ تاريخ ښه را روښانه کوي او د دې عصر پر
سياسي اوضاعو باندي کافي رڼا اچوي.

## 《 ۱۱۵ 》

## د فارسي ژبي د اطلاعاتو کالنۍ

دا هم يوه د خطونو او مراسلاتو مجموعه ده چي د کمپنۍ د مامورانو
او هندوستانيو حکمرانانو او نوابانو تر منځ مخابره سوي دي، او د درانو د
سلطنت واقعات ښه روښانه کوي. د دغسي خطونو يوه مجموعه په نه ټوکه
کي له ۱۹۱۱ څخه تر ۱۹۱۳ م پوري له کلکتې او ډهلي څخه نشر سوې ده.



## 《 ۱۱۶ 》

## بگدان اسلانوف د افغاني راپور ليکوال

دا سړی په ۱۷۶۴ م کال عسکري کپتان و، او د روسي حکومت له
خوا افغانستان ته راواستول سو چي د احمدشاه بابا د سلطنت روابط د روس
د پترسبورگ له سلطنته سره ونښلوي، دا وغواړي چي د کندهار دربار دي
خپل يو سفير پترسبورگ ته واستوي. خو په دغه وخت کي چي اسلانوف
راغی احمدشاه په هندوستان کي و، او ده نه وکړای سوای چي له احمدشاه
سره وگوري.

بگدان اسلانوف د دې سفر راپور خپل حکومت ته وړاندي کړی دی.
چي اوس د روسيې د خارجي سياست په آرشيف کي (اوغاني کارونه ۱۷۶۳
_ ۱۷۶۶م) خوندي دي.

دی د احمدشاهي دولت د خراساني توابعو او ځينو نورو سياسي
اوضاعو ښه معلومات ورکوي، چي ځيني گزارشات يې گانکوفسکي د
شوروي د ختيځ پوهني په مجله ۸۲ گڼه ۱۹۵۸ م کي نشر کړي دي.

## 《 ۱۱۷ 》

## د يفريموف ياد داشتونه په روسي ژبه

ف . س . يفريموف يو روسي درباري مشاور د خپل سفر ياد داشتونه
په ۱۷۸۴ _ ۱۷۹۶ _ ۱۸۱۱ م کلو کي خپاره کړل دې درباري مشاور د
بخارا او خيوا له لاري فارس او هند ته سفرونه وکړه چي له دې ځايه بيا
انگلستان او خپل وطن ته ولاړ. د ف . يفريموف نه کلن سفر په نامه يو
کتاب چي دغه سيمه د احمدشاهي امپراتورۍ يوه وړوکې برخه وه نو د
يفريموف معلومات د دغي دورې د سياسي او اقتصادي اوضاعو د
روښانولو لپاره گټه ور دي.

## ﴿ ۱۱۸ ﴾

## د جان فاستر د سفر یاد داشتونه

دا سړی د شرقي هند د کمپنۍ یو منصبدار و، چې د معلوماتو لپاره په ۱۷۸۳ م د درانو پاچهانو په وختو کې د ګرجي سوداګرانو په لباس له کلکتې څخه د کشمیر پر لار پېښور، کابل، کندهار او هرات ته راغی او دلته یې پر سیاسي واقعاتو او د ښارونو پر حال او تجارت او کسبونو او مالیاتو او ګمرکي محصولاتو او د ولایتونو پر حاکمانو او مرکزي حکومت او د تېمورشاه پر عسکري قواوو باندې مفصل معلومات ټول کړل او په دوه ټوکه کې یې په لندن کې په ۱۷۹۸ کال چاپ کړل. چې الماني ترجمه یې په ۱۷۹۹ م او فرانسوي په ۱۸۰۸ م له پاریسه خپره سوه.

## ﴿ ۱۱۹ ﴾

## راورټي د پښتو او افغان پېژندنې ستر لیکوال

دا سپاهي او افغان پېژندونکی انګرېز مؤلف په ۱۸۲۵ م د انګلستان د پالموت د پیټر راورټي په کور کې وزېږېدی او تر زده کړو وروسته په عسکري ضابطانو کې هند ته راغی.

چې په ۱۸۴۳ م د بمبي په پیاده لښکرو کې و. او په ۱۸۴۸ م یې د ملتان په محاصره کې برخه درلوده. په ۱۸۵۰ م د سوات په جنګو کې شامل و. بیا له ۱۸۵۲ څخه تر ۱۸۵۹ م پورې په پنجاب کې د کمشنر معاون و. خو یې په ۱۸۶۳ م د میجرۍ په رتبه متقاعد سو. ده د هندوستان ډېرې ژبې زده کړې وې. پر پښتو او فارسي ژبو باندې هم حاوي و، د هندوستاني اصطلاحاتو لوی قاموس یې په ۱۸۵۹ م خپور کی، او ډېر کتابونه یې کښلي دي.

چې دلته یې تش هغه کتابونه ښیو چې په افغان پېژندنې پورې اړه لري. وفات یې په لندن کې په (۲۰) اکتوبر ۱۹۰۶ میلادي دی.



(۱) پر افغانستان او د بلوچستان پر یوه برخه باندې یادداشتونه:

دا کتاب د جغرافیا او بشر پېژندنې او تاریخ یو غټ کتاب دی چې راورټي د افغاني او تاجیکو مؤرخانو او جغرافیا لیکونکو او شجره پوهانو د ناپېژندلو لیکونو په حواله سره راټول کړی دی، چې د افغانستان د خلکو د پېژندنې لپاره یو غټ تحقیقي کتاب ګڼه سي او په ۱۸۸۰ م لومړی پلا له لندنه خپور سوی دی.

(۲) د پښتو ګرامر درې واره بشپړ سوی او چاپ سوی دی. او د پښتو او پښتنو پر تاریخ یوه مفصله او ګټه وره مقدمه لري. دریم چاپ ۱۸۶۷ م.

(۳) پښتو ډکشنري په انګرېزي. دوهم چاپ ۱۸۶۷ م.

(۴) ګلشن روه ـ د پښتو ادب غورچانې ۲۱۲ مخه لومړی چاپ هرتفورډ ۱۸۶۰ م، دریم چاپ کابل ۱۳۵۶ ش.

(۵) د افغان شاعرانو له کلامه منتخبات چې له ۱۶ تر ۱۹ سدۍ پورې شاعران پکښې شامل دي. د انګلیسي ترجمې سره د لندن چاپ ۱۸۶۴ م.

(۶) د منهاج سراج جوزجاني د طبقات ناصري دوه ټوکه په انګرېزي ترجمه د تعلیقاتو سره د ۱۸۸۱ م چاپ.

(۷) د هرات تاریخ له قدیمه تر اوسه چې چاپ سوی نه دی او نسخه یې په انډیا آفس کې ده.

(۸) د افغانانو تاریخ او د دوی هېواد ـ چې له ډېرو خطي منابعو څخه راټول سوی و او د ده د مرګ پر وخت یې قلمي نسخه وه.

## ﴿ ۱۲۰ ﴾

## پاترکروسینسکی د (انقلاب ایران) لیکوال

دغه سړی یو نصراني کشیش و، چې د هوتکو په وختو کې د اصفهان اوسېدونکی و او د شاه محمود او اشرف د عصر واقعې یې په سترګو لیدلې او کښلې دي.

انګرېز مشهور ختیز پوهاند براون وایي چې د ده کتاب انقلاب ایران په انګرېزي هم ترجمه او نشر سوی و. (د عباس نامي مقدمه . ز)

﴿ ۱۲۱ ﴾

## میرزا محمد خلیل صفوي د (مجمع التواریخ) لیکوال

دا مؤرخ په خپله صفوي او د ایران یو بصیر مؤرخ دی چي د صفویانو د وروستنیو وختو احوال او د افغانانو فتوحات او واقعې په خپل کتاب مجمع التواریخ کي تر ۱۲۰۷ ق پوري بیانوي. دا کتاب په ۱۳۲۴ ش په تهران کي چاپ سو، او د هوتکو د دورې یو مستند ماخذ دی. د مولف وفات ۱۳۲۰ ق کال دی.

﴿ ۱۲۲ ﴾

## میر احمدشاه رضواني د (تحفة الاولیاء) لیکوال

دغه مولف د پښتو ژبي یو تکړه لیکوال او د پېښور د اکبر پوري اوسېدونکی و، چي د څورلسم هجري قرن په لومړیو وختو کي ژوندی او د شمس العلماء لقب یې هم ګټلی و. (۱۲۷۹ _ ۱۳۵۳ ش) د پښتو ګرامر وافیه او شکرستان افغاني، بهارستان افغاني د ده چاپ سوي آثار دي.

د ده یو بل کتاب تحفه الاولیاء هم په لاهور کي په ۱۳۲۱ ق چاپ سوی دی، چي د خټکو د شیخ رحمکار د کورنۍ او د هغو سیمو د نورو ولیانو احوال لري او د یوسفزو او خلیلو او مومندو د تپو څیني تاریخي واقعې یې هم راوړي دي.

﴿ ۱۲۳ ﴾

## تاریخ افغانستان

د دې کتاب مرتب او چاپوونکی په اردو ژبه میر اشرف علي د مجمع الاخبار موسس دی چي د بمبئي د افضل الدین په چاپخانه کي په ۱۲۶۱ ق ۱۸۴۵ م کال ۳۴۰ مخه چاپ سو. په دې کتاب کي له لومړي مخه تر ۹۰



مخه د سید فدا حسین ترکسوار بخاري حیدري له کتابه چي په ډهلي کي چاپ او خپور سوی و (وګورئ : ۷۱) را اخیستل سوي مطالب دي. له ۹۲ تر ۱۴۰ د انګرېز او افغان د لومړي جنګ او اکبرخان د وختو واقعې بیان سوي دي، چي دغه برخه هم د شیخ ذوالفقار الدین سجونپوري له اردو تاریخ افغانستانه اقتباس ښکاري. له ۳۲۰ تر ۳۳۱ مخه پوري تر لومړي جنګ را وروسته د افغانستان او سند واقعې بیاني سوي دي، چي په خپله میر اشرف علي سره راټولي کړي دي.

داسي ښکاري چي همدغه کتاب به د میرزا عطامحمد ښکارپوري په لاس کي و چي د نوای معارک په لیکلو کي به یې ګټه څني اخیستې وي.

(وګورئ : ۴۳)

توضیح : لکه د دې رسالې تر نمبر (۷۱) عنوان لاندي چي ولیکل سوه "سید فدا حسین عرف نبی بخش بخاري حیدري د تراکسوارانو جمعهدار په ۱۸۳۹ م کال د انګرېزانو د متجاوز لښکرو سره افغانستان ته راغلی و ده خپل مشاهدات په ۱۸۴۲ م په ډهلي کي چاپ کړل چي د میر اشرف علي د کتاب د لومړۍ برخي ماخذ و.

تر دې علاوه د ابوالقاسم دهلوي ظفرنامه (د دې رسالې نمره ۷۰) چي په فارسي منظومه تاریخچه وه شیخ ذوالفقار الدین سجونپوري په اردو ترجمه کړې وه، چي دغه هم د میر اشرف علي د تاریخ افغانستان په دوهمه برخه کي له ۹۲ تر ۱۴۰ مخه ځای سوې ده.

(د تفصیل لپاره وګورئ : نوای معارک د حبیبي چاپ د ۳۶۶ _ ۳۶۷ مخ لمنلیک)

﴿ ۱۲۴ ﴾

## د ملتان د سدوزو د تاریخ لیکوال احمدنبی خان

تر احمدشاه بابا دمخه لا د سدوزو یوه څانګه چي د مودود خان او بهادر خان او ځعفران خان کهولونه وو په ملتان کي اوسېدل او د هغه ځای مقامي مشران وو.

په دغو سدوزو باندي يو کتاب په لوړ عنوان په انگرېزي ژبه د دغو سدوزو يوه کروسي احمدنبي خان کښلی او په ۱۹۷۷ م کال په لاهور کي چاپ سوی دی چي عکسونه او شجره هم لري.

### ﴿ ۱۲۵ ﴾

## علي قلي ميرزا د (تاريخ وقايع و سوانح افغانستان) مؤلف

دا سړی د قاجاري شهزادگانو څخه و چي په اعتضاد السلطنه ملقب او د پوهني وزير و، په لوړ نامه يې د افغانستان يو تاريخ ليکلی دی، چي په ۱۸۵۶ م په تهران کي پر ډبره چاپ سوی دی.

### ﴿ ۱۲۶ ﴾

## بهاري لال د (احوال نجيب الدوله و علي محمدخان و دوندي خان) ليکوال

دا سړی د بدري داس زوی او د نجيب الدوله منشي و، چي په ۱۲۰۱ ق يې دغه کتاب کښلی او د پښتنو سردارانو نجيب الدوله او علي محمد خان او دوندي خان احوال پکښي ليکلي دي په دې کتاب کي د نجيب الدوله روابط د احمدشاه بابا سره په تفصيل راغلي دي او خطي نسخه يې د حيدرآباد د نواب سالار جنگ په کتابخانه کي وه، چي يو نقل يې د امرتسر خالصه کالج په کتابخانه کي خوندي دی.

### ﴿ ۱۲۷ ﴾

## فقيرمحمد د (جامع التواريخ) ليکوال

دا د اسلام يو عمومي تاريخ دی چي يو باب يې د احمدشاه د هندوستان پر لامونو باندي کښل سوی دی، د کلکتې چاپ ۱۸۳۶ م د کانپور چاپ ۱۸۷۴ م.



### ﴿ ۱۲۸ ﴾

## عبدالقادر خان کابلی د (اويماق مغل) ليکوال

ميرزا محمد عبدالقادر خان چي په شاه محمدخان کابلي مشهور و د ده نيکه له کابله ولاړ، او د هند په گواليار کي اوسېدی، او عبدالقادر په ۱۸۵۷ م هلته وزېږېدی، ده يو غټ کتاب په فارسي ژبه په ۱۹۰۰ م د مغولو د قبيلو پر احوال باندي وکيښ چي په ۱۳۱۹ ق يې په امرتسر کي چاپ کړی دی.

دا کتاب د افغانستان د سدزو او محمدزو پر وختو باندي ډېر تاريخي گټه ور مطالب لري او د هزاره او اوزبکو قبيلو نومونه او ځانگي راښيي.

### ﴿ ۱۲۹ ﴾

## محمود بن اميرولي د (بحر الاسرار) مؤلف

دا سړی د بخارا د خانانو کتابدار مورخ او واقعه نگار و، چي تر ۱۰۳۴ ق وروسته يې په افغانستان او هند کي سفرونه وکړل او يو غټ کتاب يې د بحر الاسرار في مناقب الاخبار په نامه وکښی، چي بخارا د خانی حال يې له ۱۰۰۶ ق څخه تر ۱۰۵۰ ق پوري په تفصيل کښلی دی.

په دې کتاب کي د افغانستان تاريخ او جغرافيا او بشر پېژندني او اجتماعي احوال مفصل معلومات سته چي خطي نسخې يې د تاشکند او پاريس په کتابخانو کي سته.

### ﴿ ۱۳۰ ﴾

## ميرزا سنگ محمد بدخشي د (تاريخ بدخشان) مؤلف

دا مؤلف د بدخشان و چي په لوړ تاريخ کي يې د بدخشان تاريخي واقعي له ۱۰۶۸ ق څخه تر خپله وخته ۱۳۲۳ ق پوري کښلي دي، يوه

تکمله هم لري چي ملا فضل بېگ روښاني په شلم قرن کي پوري نښلولي ده.
عکسي نسخې يې په ماوراء النهر کي وې چي يوه نسخه يې عکسي هم چاپ سوې ده.

## 《۱۳۱》

## هنورام د (تاريخ بلوچستان) مؤلف

دا سړی د شلم قرن په ابتداء کي د انګريزي بلوچستان يو مامور و.
چي د بلوچستان يو تاريخ يې په اردو په کوټه کي وکيښ. چي ۱۹۰۷ م کال په لکنهو کي چاپ سو.
دا کتاب د افغانستان او بلوڅو روابط او تاريخي واقعې د بلوڅو د شجرو او انسابو سره ښه راښيي. کله جغرافي او رجالي برخي هم لري.

## 《۱۳۲》

## تاريخ قندهار در عصر دراني

په لوړ نامه يو فارسي کتاب د لندن په انډيا آفس نمبر ۳۷۶۹ سته چي د مؤلف نوم يې نه دی معلوم.

## 《۱۳۳》

## راى چنرس د (چهار گلشن) مؤلف

دا سړی په هند کي اوسېدی په ۱۱۷۳ ق کال يې خپل کتاب تاليف کي چي بيا نو د ده لمسي راى بهان منشي په ۱۳۰۴ ق تکميل کړی دی. خطي نسخې يې د هند په علي ګړ او بانکي پور او برټش موزيم کي سته او خورا ګټه ور کتاب دی چي د هند د پښتنو شاهانو تاريخي معلومات لري او د افغاني درانو د وختو دولتي عايدات هم په شرقي ولاياتو، لکه لاهور او ملتان کي ښيي.



## 《۱۳۴》

## عصمت الدين د (خلاصة الاخبار) خاوند

دا سړی د محمداسماعيل زوی او د مير محمد لمسی و چي د امير دوست محمد خان لنډ احوال يې تر ۱۲۵۴ ق پوري په فارسي کښلي و او دوې خطي نسخې يې د بنګال په ايشياټک سوسايټي کي وې. چي په نهم قرن کي ليکل سوي وې.

## 《۱۳۵》

## سيد محمد طباطبايي اصفهاني د (نسب نامه افاغنه) مؤلف

دا مؤلف په ديرلسم قرن کي د ايران اوسېدونکی و چي د انګريزانو د سفير هنري ايليس په خواهش يې په ۱۲۲۴ ق يو کتابګوټی د (نسب نامهٔ افاغنه و کيفيت حکومت آنها) په نامه وکيښ، چي د افغانانو لنډ تاريخ او د دوی حکومت پر پاريس باندي بيانوي او د افغانستان د ښارو او اقوامو او قبيلو شرح لري، چي يوه خطي نسخه يې د بنګال د ايشيايي ټولني په کتابخانه کي وه، د ۱۲۲۴ ق کال ليک.

## 《۱۳۶》

## ثاقب د (تاريخ افاغنه) ليکوال

مؤلف يې محمد شهاب الدين خان ثاقب دی، چي د ۱۹۰۰ م په شاوخوا کي د هند له پښتني کورنيو څخه يو ليکوال و او دا کتاب يې په دوه ټوکه کي په اردو ژبه د لاهور په حميديه پريس کي په ۱۳۲۳ ق کال چاپ کی. لومړی ټوک ـ ۱۲۴ مخه، دوهم ټوک ـ ۲۱۴ مخه.
دغه کتاب هم د افغانانو د اسرائليت عنعنوي داستانونه لري خو ډيري داسي خبري هم پکښي سته، چي تاريخي اړخ يې ټينګ ښکاري او د

افغانانو د اولیاوو احوال یې د نعمت الله له مخزن افغاني څخه را اخیستي دي.

﴿ ۱۳۷ ﴾

## احمد د (معدن اخبار احمدي) لیکوال

احمد بن بهبل د جانګیر په وختو د ۱۰۲۸ ق په حدودو کې دغه کتاب په دوه ټوکه کې کښلی او د شرق عمومي تاریخ دی، چې د هند د افغاني شاهي کورنیو لودیانو او سوریانو احوال هم پکښې سته، د کابل په ارشیف کې یې هم یوه خطي نسخه سته، د برټش موزیم او انډیا آفس نسخې یې هم معلومې دي.

﴿ ۱۳۸ ﴾

## محمد بدر الرحمن د (واقعات دراني) مؤلف

دا کتاب د درانو د سلطنت تاریخ دی، له احمدشاهه د شاه شجاع تر قتله ۱۲۵۷ ق پورې چې د افغان او انګریز لومړی جنګ لا جاري و. د هند په کانپور کې چاپ سوی دی او د طبع تاریخ نه لري.